# زیست روزگار

# د

# فقیر جمیل بیگ

مصنف

ډاکټر راج ولي شاه خټک

پښتو اکیډیمي پېښور یونیورسټي

# زیست روزګار

# د

# فقیر جمیل بېګ

مصنف:
ډاکټر راج ولي شاه خټک

پښتو اکېډیمي پېښور یونیورسټي

# تړون

دشیخ رحمکار زیرےؒ کاکا په نوم

★

په بوئ دِ ټول عالم خوشبوئ شو
اصیل چندنړه په تا پریوتل ګردو ته

★

# فهرس

بسم الله الرحمن الرحيم

نحمده ونصلي على رسوله الكريم

---

خوشحال خان بابا مجله د علمی او تحقیقی پیش رفت د پاره جاری شوے د اعجله د شغے مودے راسے علمی او تحقیقی مقالے شائع کوی. مونږ په خوشحالیاتو میئتو او دد ے میدان ټولو محققینو ته بیا بیا خواست کړے دے چه هغوی دے په دے میدان کښے دد ے ادارے سره کومک او ملګرتیا اوکړی. زمونږ دا خواست چه ترڅه رسیدلے دے هغوی دخپل علمی او تحقیقی تړون لاره زمونږ سره یوه کړے ده. ولے بیا هم څنے دیر د انداو کنجکاوی اهل علم محققین لا داسے شته چه هغوی ته غالبًا چه زمونږ دا خواست نه دے رسیدلے. مونږ یوځل بیا د هغوی په خدمت کښے دا عرض لرو چه هغوی دے پلو هم لږه شان توجه اوکړی او زمونږ په دے سفر کښے دے زمونږ سره ملګری شی. دا اداره به دد وئی په خدمت کښے د معمول مطابق مناسب اعزازیه هم ورکوی.

وما علينا الا البلاغ

# پیش لفظ

پښتو اکېډمي یوه ریسرچ اداره ده - تحقیق او څېړنه ددې بنیادي فرائض دي او په مستقل جوړله هم دغه کار په دې اداره کښې کولے شي ددې ادارې د تحقیق د شانګه غرو ته خپل خپل کار حواله دے - او هغه کار هغوئ تر خپله وسه او اهلیت مطابق سرته رسوي.

دے سره سره ځیني داسې تحقیقي کار ونه چه هغه دډوان کار نه علاوه دے هغه هم دغه غړو ته سپارلے کیږي او د هغوئ نه دا توقع کولے شي چه هغوئ ددغه کار ددې ادارې د روایاتو او تحقیقي معیار په اندازه تر سره کړي - ددې اصل سبب دادې چه د کور او صحرا او لرے او نزدے ټولو خلقو د تحقیق څیړنے او تجسس په لړ کښې دے ادارے ته سترګے دي او هغوئ هم دا توقع لري چه ددے ځائے محققین چه څه او لیکي څه راے قائمه کړي او یا څه معلومات راوړاندے کړي - هغه د هغوئ په نظر کښې وقیع مستند او د منلو قابل وي - دا ذمه واري د اکېډمي د روایاتو له مخه د اکېډمي د محققینو تر غاړه ده - او ځکه د هغوئ نه هم ددغ معیار توقع کولے شي.

په دے سرنی کال کښے د پېښور یونیورسټۍ وائس چانسلر ښاغلے ډاکټر رشید احمد خان طاهر خیلي څوک چه په خپله هم په بنیادي جوړ

له یو محقق او سائنسدان دے هغهٔ دا مناسب اوګڼړل چه د پېښور یونیورسټۍ
هرے یوے شعبے ته څهٔ نه څه تحقیقي کار اوسپاری او د هغې شعبې سربراه
چه د دغې کار د پاره کوم یو غړے موزون ګڼړی هغهٔ ته ئے حواله کړی.
د پښتو اکېډمۍ نوم هم په دغه شعبو کښې شامل وو او د دے غړو ته هم
څهٔ تحقیقي کار د دغې پروګرام په بنیاد اوسپارلے شو - په دے کښې یو
موضوع دَ خوشحال خان خټک د ورور فقیر جمیل بېګ دَ ژوند او افکارو
په حقله هم وه - دغه موضوع بناغلی راج ولی شاه خټک ته اوسپارلے
شوه - اوکه څه هم په دے کښې دَ معلوماتو نهتون او ترتیب یو ډیر ګران
وو - خو هغهٔ ترخپله وسه په ډیر محنت او زیار ځنې حقائق راجمع کړل -
او هغه ئے دَ خپلو تحقیقاتو په رڼا کښې مرتب کړل او دغه شان یوه جامع
او په زړهٔ پورے مقاله ئے اولیکله - دا مقاله تحقیقي علمي او ادبي
د دے واړه اړخونه لری - د دے خپل یو تاریخي اهمیت هم شته او داسے
ډیرے نقطے چه دَ لټون او څېړنے محتاجے وے هغه هم پکښې د بحث لاندے
راغلی دی - زمونږ دا توقع ده چه اول خو به د دے مقالے دَ پېښور
یونیورسټۍ له خوا د چاپ کېدو څهٔ تابیا اوشی - که چرے داسے
اونهٔ شول نو انشاءالله چه خپله پښتو اکېډمۍ به ئے په خپل راتلونکی
پروګرام کښے دَ شائع کولو پروګرام کوی - ځکه چه د خوشحال ریسرچ سیل
د تحقیق د تدقیق په میدان کښې دا هم یوه اهمه موضوع ده او په
دے سبب دا حق لری چه هم په دغه منصوبه کښې ورته ځائے
ورکړے شی -

زۀ په آخر کښې د پېښور یونیورسټۍ د وائس چانسلر ښاغلی رشید احمد خان طاهرخیلي او د رئیس کلیه ادبیات شرق شمس الدین صدیقي ډېر ممنون یم چه هغوئ زمونږ ملګرې ته هم دا موقع ورکړه چه د یونیورسټۍ د تحقیق کار په میدان کښې د نورو غړو سره اوږه په اوږه مخ په وړاندې یون اوکړي -

وَمَاعلینا الا البلاغ

پروفیسر محمد نواز طائر
ډائرکټر
پښتو اکېډيمي پېښور یونیورسټي

# وړومبۍ خبره

د فقیر جمیل بیګ په ژوند او کار باندې تر اوسه پورې سم

داسې تحقیق نه دې شوې چه د هغوئ د شخصیت صحیح خدوخال پکښې

دابرخیره کړې شوې وی - ماچه کله په خپل ریسرچ پراجیکټ کښې د دې

موضوع انتخاب کولو نو په هغه وخت هم ماسره د دې خبرې شدید

احساس وو چه دا یو ډیر ګران او کړوړنکې کار دې - اوس هم زه دا محسوسوم

چه د فقیر بابا په ژوند د دې نه زیات تحقیق که ناممکن نه وی نو

بے حده ګران ضرور دې - د هغې وجه دا ده چه په قدیمی اثارو کښې او

د هغه وخت په لیکلی کتابونو کښې د فقیر بابا ذکر ډیر سرسری راغلې دې

زیات نه زیات سند د افضل خان خټک د لیکلی تاریخ مرصع دې. چه

په هغې کښې هم د فقیر جمیل بیګ ذکر ډیر مختصر دې - بل معتبر سند د

میاں شمس الدین کاکاخیل لیکلی مناقب فقیر دی - چه تر ډیره حده د

فقیر بابا د کراماتو په واقعاتو مشتمل دی - او هغه هم داسې دی چه

د زیات عقیدت له مخه یا خود مبالغې ښکار شوی دی او یا ئے د روایت

په صحت کښې شک پیدا کې شی - په دې چه د تاریخ مرصع او د کلیاتِ

خوشحال خان په رڼا کښې ئے په ځنی واقعاتو کښې تضاد دې.

د دې نه علاوه چه د سند قابل کوم کتاب دې هغه د حضرت

حنیم کل بابا لیکلی مقامات قطبیه او مقالات قدسیه دے. کوم چه که څۀ هم اوس نایاب دے. وے یوه نسخه ئے د کاکاخیلو میاګانو سره موجوده ده چه زما تر نظره تیره شوے ده. خو په هغې کښې زما د تحقیقی مقصد د پاره نۀ خو تر ډیره وخته نسخه تر لاسه راغله. او نۀ په کښې د فقیر بابا د ژوند د قولو اړخونو ذکر ے بیا موندو. دد ے نه علاوه چه په کومو نورو کتابونو کښې د فقیر بابا ذکر راغلے دے نو څنې مصنفین او لیکونکی د فقیر بابا په حقله زما په خیال د هغے غلط فهمئ ښکار شوی دی د کومو ذکر چه ما په دے مقاله کښې کړے دے.

ما تر چله وسه دد ے خبرے پوره زیار کړے دے چه د فقیر بابا په ژوند او کار صحیح او د مستند وخوالو سره معلومات را جمع کړم. په دے سلسله کښې زۀ کلو په کلو هم اوګرځیدم او د ډیرو عالمانو سره ے پرے خبرے هم اوکړے. وے چرته هم راته چا د ذکروړ امداد رانۀ کړے شو. زۀ په ډیر افسوس دا خبره کوم چه څنې عالمانو سره زما د مقصد که څۀ مواد موجود هم وو وے هغوئ را سره تعاون اونۀ کړو اګرچه زۀ ورپسے کلی ته ورغلے وم. وے زۀ خپل رب ته په دے تسلی ورکوم چه شاید هغوئ سره به زما د مقصد څه مواد موجود نۀ وو.

دد ے تحقیقی مقالے د لیکلو په سلسله کښې چه ما چا سره خبرے اترے کړی دی. په هغوئ کښې بناغلی میاں بهادر شاه ظفر کاکاخیل. بناغلے حبیب الله رفیع، بناغلے قلندر مومند. خپل ډاکټر پروفیسر محمد نواز طائر بناغلے پردل خټک، بناغلے عقاب خټک، پیغله سلمی شاهین، بناغلے

سیف الرحمٰن سید او ښاغلے پروفیسر سید تقویم الحق کاکاخیل شامل دی

ددے عالمانو سره په دے موضوع خبرو اترو کولو ما ته فائده راکړے

ده او د زړهٔ د اخلاصه د دوئ مننه کوم.

ددے نه علاوه د څینې کتابونو او قلمی نسخو په کتلو زهٔ د خپل لائبریرین

ښاغلی سرفراز خان ډیر مشکور یم چه ما ته ئے په دوړ تندی د نسخے لټولے

دی. زهٔ د خپل خوږ ملګری یار محمد مغموم ډیر ډیر تشکر کوم چا چه ما ته د

فقیر بابا د علاقے د کلو نو مونو او جغرافیائی ساخت په باره کښے معلومات

راکړی دی.

زهٔ په آخر کښے د ښاغلی لطف الله د زړهٔ له اخلاصه مننه کوم چه په ذاتی

دلچسپئ ئے ددے کتاب کتابت اوکړو.

راج ولی شاه خټک

لیکچرار ریسرچ

پښتو اکیډمی پېښور یونیورسټی

# د زیست روزگار

# فقیر جمیل بیګ

د دُنیا د تهذیبونو په قطار کښې پښتون تهذیب ځان ته څۀ یو داسې عجیبه غوندې رنګ لري چه یو پلو که د تهذیب د توري د تعریف په مروجه معنو کښې پوره نه راځي نو بل پلو د تهذیب دومره سپیڅلې څوک لري کوم چه په نورو تهذیبونو کښې ډیر کم موندلې کیږي. ترڅو پورې چه د تهذیب مقصد د لویو لویو بناړیو ابادول دي پښتنو ترا اوسه پورې هم داسې بناړ نه دې آباد کړې چه مونږ ورته د سوچه پښتون تهذیب مرکز اووایو. ولې په کوم ځائې کښې چه د تهذیب مقصد د اخلاقو معیار اوچتول او اعلی انساني اقدار پیدا کول دي هغه په پښتني اخلاقیاتو کښې د نورو چا په مقابله کښې زیات معیاري دي. که چرې مذهب د تهذیب په جوړولو کښې بنیادي لاس لري نو بیا دیو مسلمان اولس په حیث پښتون د نورو قامونو نه زیات مهذب دې ځکه چه

---

CIVILISATION IS A MOVEMENT AND NOT A CONDITION,

A VOYAGE AND NOT A HARBOR

(ARNOLD TOYNBEE)

سره د آزادۍ او انفرادیت پسندۍ په یوه مذهب اسلام متفق دے او اسلام[1] شره د نورو اوصافو د تهذیب په باب له مکمل او جدید دین دے. چه خدائے تعالٰی په هر لحاظ مکمل کړے دے[2].

که پښتنو لوئے لوئے ښارونه نه دی آباد کړی او د عمر زیاته برخه ئے د کوچی توب (NOMADIC LIFE) په ژوند تیره کړے ده نو د دے دا مطلب هرګز نه شی کیدے چه ګنی دوئ مهذب یا سوشل[3] نه دو. هم د کوچی توب په ژوند کښے او هم د مستقل قیام په ژوند کښے دوئ خپل عظیم روایات او د رسمونو تقدس ژوندے ساتلے دے. هغه رنګ کومه چه تهذیب په یو ځائے او سیدونکو ته ور بخښی. هغه رنګ پښتون ته خپل فطرت ور بخښلے ده. په دے چه پښتون په فطری ډول مسلمان دے. او اسلام دین فطرت دے.

اسلام د تهذیب پیځلے تصور وړاندے کوی. د کوم اندازه چه د دے حدیث مبارک نه کیږی. خیر الامور اوسطها.

د دُنیا نور تهذیبونه اکثر د افراط او تفریط ښکار شوی دی — یا خو ئے ېښځی د مادیت لار تینګه کړے ده او یا ئے د رهبانیت او جوګیتوب په لور خلق سم کړی دی. صرف اسلام د بنیادم د دواړو اړخونو اصلاح

---

[1] د سمندر صاحب شعر:-

عربی کښے د پښتو نوم که اسلام دے
په پښتو کښے د اسلام نوم پښتو عام دے

[2] اَلْیَوْمَ اَکْمَلْتُ لَکُمْ دِیْنَکُمْ وَاَتْمَمْتُ عَلَیْکُمْ نِعْمَتِیْ وَرَضِیْتُ لَکُمُ الْاِسْلَامَ دِیْنًا. (سورة مائده)

[3] SOCIAL دلته په لغوی معنو کښے نه بلکه په اصطلاحی معنو کښے استعمال شوے دے.

کوی یعنی د خارجي او داخلي احساس د تسکین د پاره په اسلامي تهذیب کښې یوه مکمله هم اهنګي ده - د روح او مادې ترمیانه دا هم اهنګي یا توازن که د اسلامي تهذیب صفت دے نو هم دغه صفت ډیر څانه زیات په پښتون مزاج کښې ښکاري۱

کله چه په نوره اسلامي دُنیا کښې د خلفاء راشدین نه وروستو د مادیت او روحانیت ترمیانه دغه توازن مات شو - څُنے خلق یعنې د مادیت په تیارو کښې ورک شول او څُنے د مادیت د دے تیارو نه او بوږ شو د رهبانیت لار ئے اختیار کړه نو هغه توازن او هم اهنګي دره ورے شوه دکوم سبق چه اسلام ورکړے وو یا دکوم مثال چه خلفاء راشدین وړاندے کړے وو -

دد غے سیځلي ژوند د روح سر دوباره را ژوندي کولو د پاره اسلامي تصوف په ډیرو ګرانو او سختو حالاتو کښې خپل زیار جاري ساتلے دے او وخت په وخت ئے دومره عظیم صوفیان پیدا کړي دي چا چه مسلمان د نفس پرستئ او حیوانیت په لور د تلو نه ساتلے دے - په خلو خانقاهګانو کښې ئے د اسلامي تهذیب روح ژوندے ساتلے دے - دَ عربو مسلمانانو ایرانیانو هندوستاني مسلمانانو چه د اسلامي تصوف کوم تاریخ مرتب کړے دے - هغه اګرچه د سروزرو په اوبو دیکلو جوګه

---

۱ فطرت کے مقاصد کی کرتا ہے نگھبانی
یا بندۂ صحرائی یا مرد کوهستانی

(علامه اقبال)

بوګه دے . ولے خبره داده چه آخر دداسے قسمه تصوّف ضرورت په دے ملکونو کښے ولے راپیښ شو . ځواب به ئے خامخا داوی چه کله مسلمانان بادشاهان دهوس او اقتدار تږی شول . اسلامی اقدار ئے شاته او غورزول او دخپل نفس دپالنے دپاره ئے خالص مادی ضروریاتو ته مخه کړه نو په اولس کښے ئے دتهذیب[1] دودے مونږ و په ځائے خوړ شو[2] . نو په داسے حالاتو کښے دغه صوفیان مخ ته راغلل.
په دغه وخت کښے اګرچه پښتو خه خاص نمائنده تهذیب نهٔ لرلو. ولے داسلام او پښتو ترمینځه ئے یو داسے مطابقت پیدا کړے وو کوم چه داسلامی تهذیب روح دے . یعنی دخارج او باطن ترمینځه توازن .

پښتانهٔ که هرڅو په یو ځائے نهٔ اوسیدل او دخارجی اثراتو نه ئے هم ځان نهٔ شو ساتلے . ځکه چه درو زئ دسختئ له مخه په ډیرو ناکردو او یا خپل رومانی فطرت په اضطراب کښے ساتلی وو . کنږ پهٔ س

---

[1] دلته دتهذیب نه مراد اسلامی تهذیب دے .

[2] چه عزت د عالمانو په کښے نهٔ وی
هغه ملک فسق و فساد شی
چه حرمت دذی ویشانو پکښے نهٔ وی
هغه ملک په بلا یاد شی
چه خالی شی د حاکم له سیاسته
په غنه ملک بید عناد شی
تاریخ مرصع ص ۲۳۹

به په هغه ځایونو کرځیده. چرته چه به ورته د روزۍ مون
څهٔ اسباب په کوتو ورتله. ولے سره د دے کوچي توب ئے د
روحانی غذا د پاره خپل روحانی مشران او بزرګان ځان سره په
احترام ساتلی دی او چه چرته دوئ تلی دی هلته ورسره دغه رو
مشران هم میشته شوی دی. د پښتنو د مختلفو قبیلو اولیاء کرام
په هره تپه کښے موجود دی د دے خبرے ثبوت دے چه دوئ په
یوهٔ ځائے کښے هم روحانی قدرونه شاته کړی نهٔ دی.

خټک[1] د پښتنو یوه لویه او مشهوره قبیله ده. د دے قبیلے
که یو خوا ته د ستر خوشحال خان خټک له برکته دے نو بل خوا د خټ
آستانے[2] یا د خټکو زیارتونه او یا ستر زیارتونه د هغه بزرګانو
د ځاله برکته چه خټک هم خټک دی او خوشحال هم د ګوئ له

---

[1] د خټکو د پیر پرستئ په حقله خوشحال بابا وائی.

په مذهب کښے خطک درست سنی مذهب دے
اما پیر ورته لهٔ جهله لکه رب دے
کهٔ په دا سبب کافر وی کند وینه
کنه واړه په مذهب کښے سنی دینه رسوا

[2] دا ستر زیارتونه دادی. غالب بابا. مست بابا. بهادر بابا
کاکا صاحب. شیخ بابر بابا. مرزا ګل بابا او فقیر بابا او دا سے نور.

مصرعه. سم رانیزئ د رته تپه شو رامداده نیسه د خټکو زیار
تاریخ مرصع ص ۲۳۹

خټکو هم لکه د نورو قبیلو په رنګ د دوزګار په کشمکش کښې تر ډیره موده کړه په س ژوند تیر کړے دے - واۍ چه دوئ د شوال[1] د غرونو نه وړه وړه راکوز شوی دی - د شوال غرونه د خوست په علاقه کښې دی یا خوست د دے شوال د غرونو په خوا کښې دے - چرته نه چه د دے خټکو هم د مادی او هم د روحانی ژوند ابتدا شوے ده - خټک چه د غه وخت کښې په هر څومره تعداد کښې وو ولے روحانی مشر ئے یلیین[2] بابا وو - دا یسین بابا له اصله سیّد وو او که پښتون وو - د دے په حقله دوه مختلفې نظرئے دی - دا موجوده کاکاخیل چه ځنې عالمان ورته یلیین خیل خټک وائی هم د دے یلیین بابا اولاد دے[3] -

کله چه د شوال غرونه یا د خوست علاقه په دے قبیلې تنګه شوه یا تنګه کړے شوه نو دوئ تړے کړه وا خسته - د وزیرستان په سیګنو ګرنګونو راتیر شول - د بنوں[4] په میرو کښې ئے کړے اچولے دی - جنګ جګړے ئے کړی دی او د لوا غر او چراټ تر د نګو د نګو څوکو رارسیدو ئے

---

[1] شوال د وزیرستان علاقه ده - د خټکو وړومبی سکونت دلته وو (تاریخ مرصع ص۲۶۲)

[2] د یسین بابا دربار یعنے روضه اوس هم په خوست کښې د روحانی تندے ماتولو چینه ګڼړلے شی - (تذکره شیخ رحمکار ص ۹)

[3] تاریخ مرصع ص ۲۶۲ (رساله کاکا صاحب ص ۲۷ از عقاب خټک)

[4] تاریخ مرصع (افضل خان خټک) تاریخ خټک ص ۱۳۳ - (عقاب خټک) خوشحال خان خټک (کامل) ص ۳

بے شانه زیات حادثات لیدلی دی - خو سره د دے ئے دچیل روحانی اساس پنگے ورکیدو ته نهٔ دی پریښی.

کله چه د وزیرستان نه راروان شول نو د موجوده کوهاټ د ویړن په قطبی او تملیئز ے یمے پریوتل[1]. څه دکوهاټ په قطبی نر ختیز رغونو کښے آباد شول. دختکو دانو ے زمکه د خوړے نه علاوه لاچئ . تیری . کربوغ او دشکی درے علاقه ده . په دے ځایونو کښے د دے قبیلے چیل ژوند ژواک شروع کړے دے. په دغه ورځو کښے هم د دے قبیلے سیاسی ژوند کهٔ هر څو ډدوئ د فطری جمهوری مزاج له مخه د جرگے په واک کښے وو ولے روحانی مرکز ئے دلته هم یو وو - او دا روحانی مرکز په کربوغه کښے ادم بابا[2] وو. څوک چه د لوئے ولی یسین بابا روحانی جانشین زوئے وو.

---

[1] خوشحال خان ختک ص ۷ (دوست محمد خان کامل)

[2] سیاح الدین کاکاخیل د مجمع البرکات د مصنف په حواله دا روایت بیانوی چه آدم بابا په خوست کښے وو. چیل شیخ ادم ختک ته ئے وصیت کړے وو چه کله زهٔ وفات بیاموم نو په اس ے واچوئ چه کوم ځائے اس اودریږی هم هلته مے دفن کړئ. نو دا اس په کربوغه کښے اودریدو او هلته ئے مزار جوړ کړ. (تذکرهٔ رحمکار ص ۱۰) ولے عقاب ختک په خپله رساله کاکا صاحب کښے ذے خبرے ته غلطه وائی او د ځانه جوړه شوے قیمتی ئے گنړی چه د دغهٔ په خیال آدم بابا هم یو یسین خیل ختک وو (رساله کاکا صاحب ص ۲۶ - ۲۷)

دکاکا صاحب کو سید ثابت کرنے کیلئے مجمع البرکات کے مصنف نے دو آدموں کا قصه گھڑا ہے.

په کوبوغه کښې دخېل روحاني مرکز قائمولو او نورو علاقو نيولو نه څه موده پس دختکو ځنې نور خېلونه چه په شوال کښې پاتې شوي وو - د ملک محمد درويش چه په جنجو مشهور وو په مشرۍ کښې دلته راغلل[1] او هم دا ملک درويش محمد جنجو هغه کس وو د چا اولاد چه ورو ستو ددې قبيلې سياسي او ادبي تاريخ ساز کړو - که يسين بابا دختکو د روحاني تاريخ مشر دے نو دا درويش محمد ئے د سياسي تاريخ مير دے - ددے درويش محمد زوئے ملک اکو يا اکوړے[2] وو - ځوک چه داکوړ خېل ختکو باني او گرزيدهٔ -

کله چه ملک جنجو وفات شو نو د هغهٔ ددے تاريخ ساز زوئ ملک اکو د بهي خېلو د ملک چاني[3] سره په څهٔ خبره وړانه راغله - دهٔ ترے کلي واخسته او خوړے ته راکوز شو - ځکه چه په خوړه کښې ددے قبيلې روحاني مرکز د ملک اکو د راتلو نه وړاندے قائم شوے وو - دا روحاني مرکز د خوړے قبلئيزے سيمے او دنوښار جنوبي ته د چراټ د غرونو په لمن کښې دلوئے ولي الله او د ادم بابا د زوئے غالب گل بابا ډيره وه - ځوک چه دلته دخېل روحاني سفر تر منزله رسولو

---

[1] تاريخ مرصع ص ۲۴۳ - خوشحال خان ختک ص ۱۸ - تاريخ ختک از عقاب ختک ص ۱۴۲

[2] داکوړخان بابا قبر په اکوړي کښې د جان محمد خان د حجرے نه بهر په مقبره کښې د سپين سنگ مرمر نه ساز کړے شوے دے - بے شانه زيات بهادر او سخي و و - تاريخ ختک ص ۱۴۲ - تاريخ مرصع ص ۲۶۴ -

[3] دغالبگل بابا مزار نن هم په دغه ځائے کښې د پلوسو په ځنگل کښې دے - د خواوشا ترے مروبه - ميرکلان - کمر ميله او دخوړے ځنې نور کلي دی - د زائرينو د آرام او قيام د پاره د غالب گل بابا په دربار کښې يو لوئے لنگر دے -

دپاره او د عبادت او تزکیهٔ نفس په خاطر به د آبادئ نه په ډده پ
ځنګل کښے ډیره شوے وو۔

غالب ګل بابا په طریقت کښے د سهروردیه د سلسلے شیخ[۱] وو۔ کومه چه وړه
دخیل پلارنیکهٔ نه جاری پاتے شوے وه۔ خو څونکه دے یو صاحب حال صو
وو نو چه کله هندوستان ته د باطنی علم د تحصیل په غرض لاړو[۲] نو په چشتیه
سلسله کښے ئے هم بیعت اوکړو۔ او دا سلسله ئے هم په خپل خاندان او
مریدانو کښے جاری کړه۔ د دے روحانی مرکز نه خواوشا په خوره کښے د

---

۱۔ د سهروردیه سلسلے مشهور امام حضرت شهاب الدین سهروردی وو څوک
چه په کال ۵۳۹ هـ کښے په سهرورد نومے کلی کښے پیدا شوے دے۔ د دے کلی د نوم
په نسبت دا طریقه د هغه نه په سهروردیه مشهوره شوه۔ سهروردیه
د ایران او عراق ترمینځه د زنجان په یو مقام کښے دے۔

۲۔ روحانی رابطه (اثر افغان) تذکره شیخ رحمکار از سیاح الدین کاکاخیل ص۱

۳۔ تذکره شیخ رحمکار ص۱۰

۴۔ چشتیه طریقه یا سلسله د خواجه معین الدین چشتی نه شروع کیږی څوک
چه د دے سلسلے امام دے۔ د دوئ تعلق د چشت نومے کلی سره وو کوم چه
ئے د پلارنیکهٔ وطن دے۔ د چشتیه مسلک شیخان وائی چه حضرت علیؓ یو
ورځ رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغے او ورته ئے عرض اوکړو چه اے
د خدائے رسوله! ماته هغه لاره اوښایه کومه چه الله ته د رسیدو
د ټولو نه اسانه وی او د هغه رنګ د دے سلسلے د ذکر تلقین حضرت علیؓ
حضرت حسن بصری ته کړے دے۔

ختکو مختلفو خیلونو او قبیلو کلی اباد کړل[۱] او په دے نوے زمکه کے خپل ژوند ژواک شروع کړو - ملک اکو چه خوړے ته راغلو نو دا زمکه ئے دومره خوښه شوه چه د ملک جانی په ډیر اصرار او راضی نا ے نه پس هم واپس کربوغ یا کوهاټ ته لا نه ړه[۲]

په دغه ورځو کښے چونکه د عامو پښتنو قبیلو ژوند د فطرت د بقاے صلح ( SURVIVAL OF THE FITTEST ) په طریقه وو - څوک به چه زوراور شول - کمزوری به ئے د ملکه اوویستل او په خپله به پرے قابض شول - نو ختکو هم دلته په جنګ جګړو کښے وخت تیر کړے دے - دا ژوکو او دله زاکو نه ئے دا علاقه اخستے[۳] ده او وړه وړه د خوړے نه پیښور په لوری را اوړیدلی دی -

د غالب ګل بابا په اولاد کښے د هغه مست قلندر زوئے نادر بابا د خپل نفس د تکمیل په غرض چه خوړه پریښوه او د میرکلان او چراټ د غرونو نه را واوړید ه - نو خپله استانه ئے د موجوده شیخی کلی پلو سئ

---

۱ د غالب بابا د روضے نه خواوشا اباد کلی مروبه - میرکلان - کمرمیله دی - په لنډه لږه فاصله ترے ترنظام پور او د خوړے نور کلی آباد دی -

۲ تاریخ مرصع ص ۲۶۷ - تاریخ ختک ص ۱۲۵

۳ ژواکی د آفریدیو ښاخ نګه ده چه د خپل جنګجو فطرت په وجه به پښتو کښے یوه اصطلاحی معنے هم لری - هغه چا ته ژواکی ویلی شی څوک چه وړی او نه ستړی کیدونکی وی - د دله زاکو نه چه کومه علاقه ختکو اخستے ده په هغے د ډاک اسماعیل خیلو ختک آباد دی -

سره نژدے په ځنګل کښے آباده کړه ۔ نادر بابا چه په مست بابا مشهور شو د غالب ګل بابا په طریقت کښے جانشین او د خټکو روحانی مشر او ګرځیدو (ړے) خټک هم د خوړے په لار دے غروبو ته راغلل او خواوشا ئے ترے کلی آباد کړل ؎۱ ۔ مست بابا د غالب بابا نه یو خو په خپله آبائی طریقه سهروردیه کښے هم ماذون وو او په چشتیه کښے به ئے هم د خپل پلار نه بیعت کړے وو ۔ دا سے ښکاری چه جاری طریقه ئے چشتیه وه ۔ صاحب حال او جذب و مستئ د زبردست کیفیت لرلو په وجه په مست بابا مشهور شو ؎۲ ۔

کله چه مست بابا په دغه ورځو کښے روحانی دنیا خوره وله ۔ ملک اکو سره د خپلے قبیلے په خوړه کښے دیرے اچولے وے او د پښتنو په روایتی طریقه ئے د معاش په بندوبست کښے د هندوانو په قافلو چپاؤنه کول ؎۳ که هر څو دے کار ته شوکے او داکے وئیلی شی وے بیا هم ملک اکوخیل

---

؎۱ داکلی لکړئ ۔ خیسرے ۔ پلوسئ او شیخے دے ۔ دا دے خټکو دا تلو نه وړاندے هم دلته نژدے د هندوانو یو څو کلی وو ۔ او دا خبره غلطه ثابتیږی چه خټک د مغل په مرسته ملک اکوړی سره د خوړے نه دیخوا راغلی وی ځکه چه ملک اکوړی ته جاګیرداری په کال ۹۷۹ء کښے ورکړے شوے ده ۔ او د مست بابا وخت د دے نه وړاندے دے ۔ د مست بابا سره نژدے د غره به بله خوا کښے قبائلو ته داوریا خیلو کلی بختئ ۔ شاه کوټ ۔ صالح خانه او جبه خټک وغیره دی ۔ ؎۲ تذکره شیخ رحمکار از سیاح الدین کاکاخیل ص ۱۱

؎۳ تاریخ مرصع ص۲۶۵ ۔ افضل خان خټک لیکی چه ملک اکو به هندوان لوټول په سبب د مسلمانئ د غیرت وژل او د اکبر په زمانه کښے د هندوانو ډیر قدر وو ۔ شاید چه اکبر ورته دا منصب د سیاسی رشوت په توګه ورکړے دے ۔ خوشحال خان خټک کامل ص ۲۰ (مؤلف)

دغه روزګار د خپلې عقیدې مطابق د شرعې نه بهر نه ګڼړلو۔ په قافلو د دې چپاوونو او لوټلو سره سره ئې د نورو پښتنو قبیلو سره هم واړهٔ واړهٔ جنګونه کړي دي۔ په دې وجه ئې د قوم او طاقت آوازه تر لرې لرې خوره شوه۔ دغه ورځو کښې د هندوستان د قسمت واګې د اکبر باچا په لاس کښې وې۔ او د اکبر ورور مرزا حکیم د کابل حکمران وو۔ د مرزا حکیم د بغاوت په سلسله کښې چه کله اکبر باچا د کابل په لور روان شو۔ نو سره د مرزا حکیم د بغاوت ختمولو دا خیال ئې هم په زړه کښې راوړې وو چه د کابل د لارې د کاروانونو د شوکیدلو د دغه شکایتونو هم څه علاج او بندوبست اوکړي کوم به چه ورته وخت په وخت د خپل رعایا نه ورتلهٔ په دې ورځو کښې د سیند په پورې غاړه یوسفزي پښتانه[1] او په راپورې غاړه خټک۔ دله زاک او اړواکي افریدي سرکښي وو چا چه به په بیلو بیلو پړاوونو د هندوستان قافلې لوټلې۔ اکبر باچا چه د اټک په کوډه د قلعې اباده لو او د لارې د حفاظت د بندوبست په حقله خپلو درباریانو سره صلاح مشوره اوکړه نو د خواؤ شا علاقې نامتو خلق ئې را اوبلل[2]۔ پوښتنه ئې ترې اوکړه چه یو داسې معتبر کس ورته اوښائی څوک چه د دې لارې د حفاظت اهلیت لري۔ خلقو ورته د ملک اکو نوم ور اوښودلو چه دا یو کس داسې دې چه د دې خبرې اهلیت او طاقت لري۔ سره د نورو قبیلو د مشرانو اکبر ملک اکو هم خپل دربار ته را اوغوښتو۔ د

---

١ خوشحال خان خټک دوست محمد خان کامل ص ٢٠ ۔

٢ خوشحال خان خټک دوست محمد خان کامل ص ٢٠

دملک اکوڼه اکبر پتیوس اوکړو چه دا دتانوم دلته ولے دومره مشهوردے اوستاد دے اثر ثبوت څهٔ دے - نو ملک اکو ورته اووئیل چه ماسره دغوږونو دوالیو دومره مهکی ډکے پرتے دی[1] - اکبر ورته په حیرانئ اووے چه ددے څهٔ مطلب دے - په جواب کښے ورته ملک اکو اووے چه ماچرے مسلمانان نهٔ دی لوټلی - دهندوانو دکاروانونو سره مے جګړے کړی دی او هغه هم داسے چه اول به مے ورته د اسلام دعوت ورکړو. که مسلمان به شو هغه به مے پرینښودو او که نهٔ به مسلمانیدو نو مړ به مے کړو - او کوم هندو به مے چه مړ کړو نو دغوږ نه به مے ترے والئ اوویسته په دے مهکی کښے به مے واچوله - ددے مطلب دا دے چه تر اوسه ما دومره هندوان وژلی دی - ددے خبرے اثر دو او که اکبر ترے څه په بله خبره متاثره شو خو زړهٔ ته ئے پریوتو او د اټک نه تر نوښار پورے علاقه ئے ورته په جاګیر کښے ورکړه - او ورسره ئے دلارے د حفاظت ذمه واری هم ورته په حواله کړه[2] -

داکبر باچا ددے منصب د قبلولو نه پسته خټک بے له څهٔ ډاره دَخوړے نه را واوړیدهٔ او د نوښار په سمه او غرونو کښے ئے کلی آبادول شروع کړل - ملک اکو دَ لنډی دریاب په غاړه د ملک پور سرائے بنیاد کیښودو چه روستو په اکوړه خټک مشهور شو - ددے نه پسته دغه اکوړے دَ خټکو پښتنو سیاسی مرکز اوګرځیدو -

---

۱؎ تاریخ مرصع افضل خان خټک ص ۲۶۵

۲؎ ایضاً ص ۲۶۵

کله چه دَختکو د سیاسی مرکز بنیاد وته پاخهٔ شول او د خپل اولس سیاسی واګې ئې د ملک اکوړی په لاس کښې ورکړے نو ورسره ئې د روحانی مرکز ورته نوره هم تیزه شوه - مست بابا چه کوم ځائې د شیخی په غرونو کښې آباد کړے وو صفه هم دسرائې اکوړی په لوړ رانړدے شو او د مست بابا نه پسته د صفه قطب زمان فرزند بهادر بابا[1] دَختکو روحانی مشر شو - بهادر بابا چله استانه د کانړه خیلو د درے نه بره دَغرونو په منځ کښې آباده کړه چه د موجوده زیارت کاکا صاحب نه سویل په لوړی په شپږ میله کښې ده - بهادر بابا په ابک[2] صاحب هم مشهور دے.

بهادر بابا د مست بابا زوئې دے - ځوک چه د خپل وخت قطب او د یو دائے زوئې مربّی او مرشد وو چا چه دَخپل ذات په رنړا یو اځې ختک نه بلکه ټوله پښتونخوا منوره کړه - دا د نوړ سرچینه

---

[1] د بهادر بابا خپل نوم بهادر دین یا بهادر خان وو - تاریخ مرصع ورته بهادر دین لیکلی دی (ص ۱۳۹) او په مناقب شیخ رحمکار کښې ورته بهادر خان لیکلی شوی دی -

شیخ جی زوئې د شیخ ابک دے چه د ستر ګو ے د مک دے
منتهی قطب دوران وو اصلی نوم ئې بهادر خان وو
(شمس الدین)

[2] ابک د ابا اسم تصغیر دے - دا نوم ورته کاکا صاحب د ډیرے مینے وئیلی دے لکه څنګه چه د پښتو عامه قاعده ده - د مینے د اظهار په طور مشرته هم اسم تصغیر استعمالوی - لکه دادے نه ادکه - تذکره شیخ رحمکار میاں الدین

چه په کوم لورې ئے پلوشے غورځیدلی دی هلته ئے یو کامل ولی پیدا کړے دے ۱۔ او دهٔ څه نه زیات مرد کامل خوشحال خان خټک ئے پښتونو ورکړے دے۔ او ددے نه زیات ئے دحقیقی فقر سخښن فقیر بابا پیدا کړے دے۔ ددغه داسے رچینه غوث دوران او قطب الاقطاب حضرت شیخ رحمکار کاکا صاحب وو۔

کاکا صاحب چه خیل نوم ئے کستیر گل دے۔ دبهادر بابا زوئے دے او د مادرزاد (مورزادی) ولی دے۔ په طریقت کښے دخیل پلار

---

۱ دیو روایت له مخه کاکا صاحب ۷۳ مریدان د ولایت درجے ته رسولی دی او په یو بل روایت کښے درے سوه یاد شوی دی۔

درے اویا ولیان دی یاد | په یوه روایت زیاد
او په بل روایت ځوانه | دی درے سوه په شمار جانه
چه صاحب دی ولیان کړی | دهٔ په مثل دځان کړی
له هغو نه یو جمیل دے | چه ولی د پاک جلیل دے

دختکو وو امیر
او س مشهور دے په فقیر

ددے نه علاوه دځنو نومونه دا دی۔

شمس الدین هروی ۔ شاه عبداللطیف
خواجه جمال الدین ۔ شیخ بابر
مرزا گل۔

ایک صاحب نه ماذون دے ولے طریقه ئے اویسیؒ ده په سهروردیه کودیه ۔ چشتیه او قادریه سلسلو کښے هم مجاز وو ۔ چونکه د خاندان جاری سلسله ئے سهروردیه وه نو ځکه دیره عامه طریقه ئے هم دا ساتلے ده ۔

حضرت کاکا صاحب د خټکو د روحانی سفر هغه اخری منزل دے په چا چه ددے قبیلے روحانی تربیت تکمیل ته رسیدلے دے ۔ او ددے روحانی سرچینے د فیض له برکته د خټکو نوم هم په روحانیت او هم په ادب او سیاست کښے په دُنیا خورشوے دے ۔ که یو ارخته ئے په

---

۱ وائی چه د طریقت د اصولو د پابندئ تر حده ئے د ځان نیکه مست بابا نه هم بیعت کړے وو ۔ لکنی دے مادرزاد ولی وو او طریقه اویسي وه (تذکره شیخ رحمکار ص ۲۶ ۔ تاریخ مرصع ص ۵۶۳)

۲ اویسی طریقه د حضرت اویس قرنی نه رارونه ده ۔ د چا تربیت چه حضور صلی الله علیه وسلم په خپله کړے وو ۔ هم دغه رنګ څوک چه نیغ په نیغ د حضور صلی الله علیه وسلم نه روحانی تربیت اوموی ۔ هغه ته اویسی طریقه ویلے شی ۔

۳ آپ نے صرف اپنے والد بزرگوار سے بیعت کی تھی ۔ دوسرے مشائخ کرام سے صحبتیں ہوئیں اور ان سے روحانی استفادہ بھی کیا مگر بیعت کسی سے نہ کی گویا آپ کا طریقہ اویسی تھا ۔ بعض کہتے ہیں کہ آپ نے مست بابا سے طریقہ سہروردیہ میں بیعت کی تھی ۔ مست بابا نے انہیں خرقہ خلافت بھی عطا فرمایا تھا ۔ بعد ازاں آپ نے متعدد علماء و مشائخ سے ملاقاتیں کیں اور آخر میں طریقہ چشتیہ میں بیعت کی ۔

(انوار اصفیا ص ۴۸۶)

خټکو کښې د شیخ بابر بابا - مرزا ګل بابا - حلیم ګل بابا او فقیر بابا په رنګ کامل اولیاء پیدا کړی دی نو په بل اړخ د ستر خوشحال خان خټک په رنګ مرد کامل تود زنت او نابغه شاعر ته تربیت ورکړې دۓ -

کله چه ملک اکوړی ته اکبر باچا په کال ۹۸۹ھ مطابق ۱۵۸۱ء کښې سرداری ورپه حواله کړه - ددے نه وړاندے اسماعیل خیل خټک اوریا خیل ، فتح خیل ، مانکی خیل ، یٰسین خیل (کاکا خیل) د خوړے

---

ئے
په شیخ رحمکار ے تازه توبه اوکړه
هغې معشوقے راته شیوه اوکړه
ذرهٔ ے هر ګوره په اندیشنه شو
توبه ے بده ده که ے توبه بنه اوکړه

---

د خوشحال تکیه په خدائے ده
بیا په تا ده رحمکاره

(کلیات ۷۲۸)

علامه اقبال هم چه د خپل شعر د ارتقاء په خاطر د محبوب سبحانی خواجه نظام الدین اولیاء روضے ته ورغے نو دائے وئیلی وو چه

میسح وحضر سے اونچا مقام ہے تیرا

ته راونښتی وو - او کلی ئے آباد کړی وو[1] - د ملک اکوړی[2] نه پس سرداری د معه شر زوئے یحیی خان ته حواله شوه - د یحیی[3] خان نه پس چه شهباز خان خټک د سردارئ د دستار په سر کړو - تو د کاکا صاحب د سوری لاندے وو - بلکه دا به او وایو چه د خټکو سیاسی اقتدار حاصلول

---

۱ - داتول خیلونه د چراټ د غرهٔ په سلسله کښے د نوښار نه قطبی ارخ ته پراته دی - د دے خیلونو آخری سر د مغرب په لوری د اسماعیل خیلو خټکو کلی چه داک اسماعیل خیل - سپین خاک جروبه او خیری کلی پکښے راځی - د اوریا خیلو خټکو کلی ورسره نښت دی چه صالح خانه لویه کوټلی وړه کوټلی ښاکوټه ښتی او جبه خټک دی - ورسره نږدے ځلوزی دی چه هم د خټکو قبیلے ځان ته یوه ځانګه ده - بیا د مانکی خیلو کلی دی چه شیخی خیسرے، مراځ سپین کانا نکرځی او مانکی شریف وغیره پکښے راځی - د دوئ نه وړاندے بهادر خیل یا ابک خیل چه کنړه خیل او پلوسئ کلی لری - یسین خیل یا کاکاخیل په زیارت کاکا صاحب ولی تنګی مناهی وغیره کښے دی - مخکښے ترے د اکوړ خیلو د ځانګے فقیر خیل دی چه چشمئ ښکاره ښتاو دړګئ او اکوړ خیل چه زیاته برخه ئے په اکوړه خټک کښے ده - اوس دیر کم پاتے دی - ځکه چه د بهرام او افضل خان خټک داری ګړی په وخت ترے ډیر د تیری په لور تلی دی - په شیدو د نګرزو کښے د اکوړ خیلو اکثریت دے -

۲ - د ملک اکوړی اته ذامن وو - مشر پکښے یحیی خان وو -

۳ - د یحیی خان یوولسی ذامن وو - مشر پکښے شهباز خان وو -

او مهذهب ژوند شروع کول د شیخ رحمکار د دنیا د راتلو سره شروع شوی دی ـ کله چه په ۹۸۹ هـ کښے ملک اکوړی ته مشری حواله کولے شوه نو دده نه شپږ اووۀ کاله وړاندے کاکا صاحب دے دنیا ته تشریف راوړے وو ـ ځکه چه دیو روایت مطابق کاکا صاحب په دروجمی رمضان المبارک ۹۸۳ هـ کښے پیدا شوے ؤ دے ـ د سردارئ دا منصب چه تو شهباز خان رارسیدو نو دا سیمه ټوله د کاکا صاحب په ولایت کښے وه ـ شهباز خان په کال ۱۰۰۰ ؁ کښے پیدا شوے دے ؎ ـ

شهباز خان په ځله هم د کاکا صاحب خاص مرید وو ـ او د ځلو زامنو تربیت ئے هم کاکا صاحب ته سپارلے وو ـ دهٔوی و نه علاوه د شهباز خان دوم زوئے جمیل بیگ ئے هغه زوئے دے چا چه د سیاست نه علاوه د روحانیت او ولایت عظیمه پنګه د کاکا صاحب د دربار نه د اکوړی خاندان ته راوړه ـ

د شهباز خان څلور زامن وو ـ خوشحال خان ؎، جمیل خان، میر باز خان او شمشیر خان ـ په دوئ کښے خوشحال خان او جمیل خان سکه وروڼه وو ـ د شمشیر خان مور امیره وه او د میر باز خان مور مهمندئ وه ـ دا څلور زامن د شهباز خان لوئے شوی دی ـ په دوئ کښے مشر

---

؎ تذکره شیخ رحمکار ص ۱۵

؎ خوشحال خان خټک از دوست محمد خان کامل ص ۲۱

؎ یو سے سکه ورور دے چه ئے لار دحق نیولے

دوه وروڼه ئے نور دی یو په نم دویم بے نمه

(کلیات خوشحال ص ۵۹۹)

خوشحال خان وو چه د شهباز خان د شهادت نه پس د خپلے قبیلے په متفقه رائے سردار منتخب کړے شو ۔ چونکه د مغلو منصب دار وو نو په خوشحال بیګ بللے شو ۔ هم دغه رنګ جمیل خان چه د خوشحال خان نه کشر او د مور و دوارو ورونړو نه مشر وو ۔ د حکومت او سردارئ په کاروبار کښے ئے د خپل مشر ورور خوشحال بیګ سره پوره لاس لرلو ۔ په جمیل بیګ مشهور شو ۔ نور دواړه ورونړه ئے چونکه په دغه وخت کښے لابلوغ ته نهٔ وو رسیدلی نو په دے وجه ئے هغه شهرت نصیب نهٔ شو. کوم چه د دے مشرانو دوارو ورونړو په برخه راغے ۔ او دا خبره د تاریخ مرصع د دے بیان نه ثابتیږی چه کله شهباز خان د کمال زئیو په تیپه اکازئیو باندے تاخت او کړو او

---

۱ مقدمه مناقب فقیر (ډاکټر راج ولی شاه خټک)
تاریخ مرصع ص ۲۶۹ کښے واقع چه د خټکو او یوسفزو جنګ کوم چه جهانګیری کښے شوے وو ۔ په هغے کښے خوشحال خان موجود وو ۔ چه لاهلک وو ۔ بدیره ئے په ځ ـ ـ ـ نهٔ ده راغلے ۔ په دغه ورځو کښے به فقیربابا ماشوم وو ځکه ئے ذکر نشته ۔

جنګ جوړ شو نو په دې جنګ کښې خوشحال خان او جمیل خان دواړه شریک وو. د نوړو دواړو وروڼو ذکر ئې په دې جنګ کښې نشته. شاید چه لاهلکان وو او د جنګ نه وو.

د دې جنګ او د شهباز خان د شهادت نه وروستو د خوشحال خان سرداري منصب او د منصب د پرېښودو تر وخته په خاندان کښې او په پښتونخوا

---

له دا جنګ په کال ۱۰۵۰ھ کښې شوې وو چه شهباز خان پکښې زخمي شو او وروستو ئې شهادت بیا موندو. د شهباز خان دې مرګ ته خوشحال خان شهادت وئیلې دې. اګرچه ځنې خلق پرې دا تنقید کوي چه د خپلو پښتنو وروڼو تر مینځه په دې جنګ کښې وفات موندل د شهادت په درجه کښې نه راځي. ولې هر کله چه شهباز خان د سردارئ په ګدئ کښیناست نو د دې قسمه جنګونو په حقله ئې د هغه وخت علماؤ په فتوی ورته دا جنګونه د نام نهاد مسلمان حکومت په خاطر جائز ښکاریده. هم د شهباز خان په تقوی او دینداری کښې هیڅ قسمه شک نشته نو د هغه د دې مرګ د خوشحال خان شهادت وئیل مناسب دي. لکه څرنګه چه وړاندې اووئیلې شول. دا معرکه په کال ۱۰۵۰ھ کښې شوې وه. په دې وخت کښې د خوشحال خان عمر ۱۰۵۰ھ-۱۰۲۲ھ اته ویشت کاله وو او که د ښاغلي افضل رضا لیکلې د جمیل خان بابا تاریخ پیدائش ۱۰۲۴ھ درست اوګڼړلې شي نو د هغه عمر په دې وخت شپږ ویشت کاله وو

نوټ:- د فقیر بابا د زېږېدنې نېټه په پټه ستوري (افضل رضا)

کښې څه داسې اړې ګړې وو چه پکښې د میربازخان او شمشیرخان
د ذکر هډو څه اهمیت ښکاره نه شو - البته په تاریخ مرصع کښې
د کادې او بادې د وه کردار ونه او نوم ونه داسې دي چه هغوئ
په دغه دواړو کښې دیو کس زامن دي او په خاندانې سیاست کښې
ئې برخه اخستې ده -

د کادي او بادي اصلي نوم ونه نه دي معلوم - کیدے شي
چه کادر خان او بهادر خان وي - ولې چه شمس الدین په

---

* کادے او بادے د میربازخان زامن وو - د خوشحال خان
وریرونه وو - په یو وخت کښې د فقیر بابا مریدان شوي وو - ځکه
چه د فقیر بابا نوم ان هم وو - دوستو بیا د بهرام خان مکري
شول - افضل خان ورته په تاریخ مرصع کښې ځائے په ځائے
بد رد وئیلي دي (تاریخ مرصع ص۹۳) کښې لیکلي دي چه دا
دواړه د نوښار یو خوریونه وو - نو هر کله چه د میربازخان
مور د نوښاره وه په دے بنا موږ وئیلے شو چه دا دواړه
د میربازخان زامن دي ـــ هم په تاریخ مرصع کښې په
صفحه ۲۰۲ کښې دا خبره ثبوت ته رسي - چه کادے
او بادے د میربازخان زامن او د خوشحال خان خټک
وریرونه وو -

مناقب فقیر کښے دیوے غټے غلطۍ فهمۍ سره د دوئ ذکر کړے دے۔ چه بیان به ئے روستو راشی۔ ولے په تاریخ مرصع کښے ورته کادے او بادے لیکلی دی۔ چه افضل خان ورته دخپل مخالفت په سبب دتضحیک په طور دتصغیر دا نومونه اخلی۔ که چرے دشمس الدین دبیان په رڼا کښے

---

له الف:- دا غلط فهمی څه دا دے دلته چه مناقب فقیر کښے دشید و دهغه وخت دَدوو خانانو قادرخان او شهباز خان ذکر شوے دے۔ ځکه چه دفقیر بابا وریرونه او زومان هم وو۔ او دَدوئ کورونه دفقیر بابا په اندارسیند لاهو کړی وو۔ هرکله چه قادرخان او شهباز خان دخوشحال خان خټک زامن وو او په مذکوره منقبت کښے دوریرونو په حقله واضحه خبره نشته۔ نو دا غلط فهمی ترے راولاړیږی چه جوړ دا خانان دخوشحال بابا زامن وو۔ حالانکه دا دوا ړه کادے او بادے کیدے شی۔ ځکه چه دا کادے او بادے په یو وخت دفقیر بابا مریدان شوی وو۔ او دفقیر بابا زومان هم وو۔ دَفقیر بابا دوروریر بازخان زامن وو۔ وروستوئے فقیر بابا سره اختلاف شروع کړو۔ او په شیدو کښے به ئے دهغهٔ مریدان تنګول۔ دَتاریخ مرصع ص۳۹۸ نه دا ثابتیږی چه د کادی او بادی فقیر بابا سره اختلاف راغے او مردودان طریقت شول۔ د بادی زوئ ذوالنون یوځلے د ذکر جهر په مسئله توره په لاس په فقیر بابا پسے ورغلے وو د دوئ د دیر ظلم په وجه ورته فقیر بابا ښیرے اوکړے او کورونه ئے وران شول۔ او اولادئے نامدار خان په نظام پوره مړ کړو۔

(ب) د کادی او بادی کورونه افضل خان خټک وران کړی او سوی دی۔

(تاریخ مرصع ص ۳۹۸)

دَ دوئ دواړو کردار ته اوکتے شی نو بیا دافضل خان خټک دا خبره درسته ده چه د دوئ کار دمنافقت او شیطانئ نه سیوا نور څه نهٔ وو.



# فقیر جمیل بیګ خان خټک

په وړاندینو مخو کښې چې د خټکو د قبیلې د ژوند او روحاني ارتقاء کوم

د فقیر بابا خېل اصلي نوم جمیل خان وو چې د مغلو سره د پلار نیکهٔ د تعلق په وجه په جمیل بیګ مشهور شو. تاریخ مرصع مناقب شیخ رحمکار مناقب فقیر کښې ورته هم دغه نوم لیکلے شوے دے. د دے نه علاوه د فقیر بابا خېل سله نمسی ولی محمد خټک څوک چې د نور محمد یه کاتب دے هغهٔ هم ورته جمیل بیګ لیکلے دے. او د هر څه نه غټ سند د فقیر بابا د خېل لاس لیکلی دل تذکرة الابرا هغه بیان دے.

کاتب این کتاب جمیل ابن شهباز افغان خټک مرید شیخ رحمکار افغان خټک است. کله چې په فقیر بابا پوره تحقیق نهٔ وو شوے نو ځنې خلقو ورته قیاساً جمال خان لیکلی دی چې سراسر غلط دے. دا غلط فهمي د ټولو نه وړاندې د مجمع البرکات مصنف پیدا کړې ده چا چې د تذبذب په عالم کښې قیاساً د کاکا صاحب یو بل مرید خواجه جمال الدین جمیل بابا ګڼړلے دے. د مجمع البرکات نه وروستو چې چا هم دے مذکوره کتاب نه حواله اخستې ده نو د فقیر بابا نوم ئې جمال ګڼلے دے. د تذکره شیخ رحمکار مصنف سیاح الدین کاکاخېل هم د مجمع البرکات په وجه د فقیر بابا په نوم کښې د غلطۍ ښکار شوے دے او هم دغه رنګ د انجمن اتحاد جمال خېل چې فقیر خېل میان ګان دی. او د جمیل بابا خېل اولاد دے. هغوئ هم د دے غلطۍ ښکار شوی دی. پکار دی چې په داسے ټولو اثارو کښې د فقیر جمیل بیګ د نوم درستي اوشي چرته چې ورته د جمیل خان په ځائے جمال خان. جمال الدین یا جمال بیګ لیکلی شوی دی.

مختصر ذکر اوکړے شو دهغے نه مراد د فقیر جمیل بیګ د ژوند اود تصوف په لورې د رجحان دپاره هغه ماحول په ګوته کول دي کوم ماحول چه د خټکو د اکوړخیلو دا خانزاده توره زن سپاهي پښتون او لوئے عالم د دنیاوي سیاست او حکومت په ځائے د فقر او ولایت په تخت تخت نشین کړے دے چې نوم ئے جمیل خان دے او په فقیر جمیل بیګ ئے شهرت موندلے دے. د خوشحال خان خټک کشر ورور او د شهباز خان خټک دویم زوئے دے.[1]

---

[1] مقدمه د مناقب فقیر (ډاکټر راج ولي شاه خټک)

جمیل بیګ ته د فقیر لقب د تهولو نه وړاندے کاکا صاحبؒ ورکړے وو.

ومرشدم مرا فقیر خواند وهمین نام جاری شد پس من

وروستو فقیر بابا د فقیر په نوم دومره شهرت او موند وچه خپل نوم ئے پکښے پټ شو. د دے نه علاوه ورته په خاندان کښے د ډیر احترام له مخه میاں جیو هم ویلے شول.

د دے لقبونو (فقیر او میاں جیو) په موجودګئ کښے د هغه وخت اثار مونږ ته څه بل لقب نه ښکاره کوي. د ډیر جذب و مستئ او فنا د حالت په وجه ورته کاکا صاحبؒ فقیر ویلی دي. فقیر د تصوف په اصطلاح کښے هغه چا ته وائي ځوک چه د خدائے تعالیٰ نه سیوا د بل چا محتاج نه وي او څنے دا هم وائي چه هغه د خدائے تعالیٰ محتاج هم نه وي ځکه چه احتیاج صفت موجود دے او فقیر خو د نیستئ په سمندر کښے لامبو زن وي. د خپلے هستئ نه هم تیر شوے وي. چه کله هستي پاتے نه شي نو احتیاج بیا د څه او څنګه پیدا شي. هم په دے معنو کښے ویلے شوي دي واذا تم الفقر فهو الله او دا حقیقي فقیر وي.

دخپل خانداني او قامي روایاتو له مخه ئې په ځوانئ کښې د ننګ ویت او پښتو په خاطر په دواړه لاسه توري وهلي دي او که د خوشحال خان خټک د مړني تعریف د هغه دیوې مصرعې مطابق داوي چه

مړنے په دوغ صورت نه ځي له جنګه

نو فقیر جمیل په عملي طور دا ثابته کړې ده چه هغه پوره پښتون مړنے وو - دخپل پلار نیکه د منصب په خاطرئې هم توري وهلي او زخمونه په ډاروونه په وجود اخستي دي - او دخپلې قبیلې په ننګ کښې هم ژوبل شوے دے - دپښتني روایاتو له مخه ئې د انتقام[1] معنې په خپل وجود د زخمونو په صورت کښې لیکلې دي.

خوشحال بابا وائي چه -

څو وا نخلي له غلیمه انتقام

مرد نهٔ خوب کا نهٔ خوراک کا نهٔ آرام

نو په دے معنو کښې فقیر جمیل په رشتیا هغه مرد دے چا چه ترهغې پورے خپل هیو احساس او هره جذبه په زړهٔ کښې ښخه ساتلې وه - ترڅو چه ئې دخپل پلار د مرګ انتقام نهٔ وو اخستے او چه کله ئې دخپل پلار د مرګ بدل واخستو نو بیا که یواړخ ته ئې په دغه جنګ

---

[1] تاریخ مرصع ص ۲۷۱

میاں جمیل چه زوئې د شهباز خان او د شیخ رحمکار مرید وو - ابتدائې د حال داوه چه شهباز خان شهید شهٔ لکه پخوائې مذکور شوے دے - دے له پلاره سره وهٔ زخمي شوے وو - چه کورته راغے له زخمه ښهٔ شه د رور سره ورور شهٔ په اکا خیلو باندے راغے قتل عام ئې اوکړهٔ - د پلار خون ئې واخست تاریخ مرصع ۲۹۷

وجود ژوبل شوے دے نو بل اړخ ته ئے احساس هم ژوبل شوے دے۔ دروغ ژوبل احساس له درد ده چه ئے روح زخمی شوے دے نو یائے علاج په دنیاوی چارو کښے نه دے موندلے او په دے نتیجه رسیدلے دے چه د روح د زخم علاج که چرته موندلے شی نو صفه د فقر په وطن کښے دے۔ او خوش قسمته په دے وو چه د فقر نه بادشاهی چرته لرے نهٔ وه او نهٔ پردئ وه۔ په خپل کور او خپل اولس کښے د حضرت شیخ رحمکار کاکا صاحب په استانه کښے وو[ل]

---

ل په مناقب فقیر کښے لیکی چه یوه ورځ فقیر بابا د ښکار په غرض سور د غرهٔ خواته اوښے وو۔ کاکا صاحب سره دخپلو مرید انو دیوے اونے لاندے ناست وو۔ یو مرید ترے تپوس اوکړو چه دجنت سوارهٔ به څنګه وی۔ کاکا صاحب ورته فقیر بابا په ګوته کړو چه مخامخ روان دو۔ دے فرمائیل چه دَجنت سوارهٔ به داسے وی لکه دا مخامخ چه روان دے۔ د کاکا صاحب ددے ګفت سره فقیر بابا په زمکه راګزار شو۔ د خانئ جامے ئے لرے کړے۔ کاکا صاحب خپله شړئ ورکړه او ورته ئے اووے چه ته ئ اوس دامیر نه فقیر شوے دا فقیری د مناقب فقیر له رویه یو حادثاتی امر ښکاری۔ ولے دَ راقم الحروف په خیال دا حادثه د اکاخیلو نه دانتقام اخستو نه وړاندے شوے وه۔ خو چه کله خوشحال بابا د شاه جهان ملاقات ته روان شو نو فقیر بابا اولاد د خان سره کړو او چشمئ ته د فقیرئ د ژوند په خیال راغے۔ څکه چه د فقر رنړائے ددے یوه واقعے یا حادثے په سبب لهٔ اوله په زړهٔ خوره شوے وه۔

خان او سردار جمیل خان چه په قسمت کښې ئې د فقر او ولایت تخت لیکلے وو. په دنیاوی چارو کښې هم پوره برخه اخستے ده. او په یو وخت کښې ئې د دے د حصول زیار او خواهش. ئې هم کړے دے. څنګه چه پیدا په داسے کور کښې وو چه د خټکو د خانئ او سردارئ کور وو او دا کور خان پیړئ په پیړئ د منصب د.رئ په موروثی دول په دے کور کښې رارواوه.

فقیر جمیل بیګ د سردار شهباز خان کره په کال ۱۰۲۲ھ[1] کښې په اکوړی کښې پیدا شوے وو. د علم د تحصیل د مختلفو فنونو د زده کړے پوره اسانتیاګانے ورته حاصلے وے ځکه چه شهباز خان که په خپله عالم او فاضل نهٔ وو نو د علم او فن په قدر پوهه وو. د خپل اولاد د تعلیم د پاره به ئې خامخا په خاطر پورے بندوبست کړے وی.[2] ګنی د خوشحال خان خټک په شان عالم او فنکار زوئے او د فقیر جمیل بیګ په شان مصنف او عالم ته به ئې څرنګه تربیت ورکوو.

فقیر جمیل بیګ چه د خانئ او سردارئ په ماحول کښې سترګے او غړولے نو که یو خوا ته ورته د ژوند ټول سهولتونه حاصل وو نو بل اړخ ته ورته د خپل پلار نیکه نه په میراث کښې دشمنی هم پاتے وه. د دے دشمنئ تقاضے او د منصب د اهلیت تقاضے داسے وے چه فقیر بابا ته د سپه ګرئ

---

۱ د فقیر بابا د زیږیدنے صحیح نیټه نهٔ ده معلومه. ۱۰۲۲ اندازاً ده.
(پټه ستوری افضل رضا)

۲ خوشحال بابا په دستارنامه کښې د خپل استاد شاه اویس ملتانی ذکر کوی. او ورته زمونږ استاد وائی. زمونږ نه مراد هم ورونړه کیدے شی.

ني ئې ورزده کړې وو . او چه کله د ځوانئ عمر ته را اورسيدو نو سره ذوره ورو ورو ذمه داريو د باج او خراج د حصول او د دے حصول دپاره د جنګونو جګړو د غه ذمه وارى ئې هم په سر پړته وه . شهباز خان چه په کوم انداز کښے د منصب پالنه کړے ده او ورسره ئې د خپل پلار نيکه نه پاتے دشمنى پاللے ده . په دے کښے ورسره خپل زوئے فقير جميل بيګ خانځا شامل وو .

کله چه جميل بابا په ۱۰۵۰ھ کښے د شين ويشتو کالو د ذليستوب عمر ته اورسيدو نو قدرت ورته هغه معرکه ور مخامخ کړه کومه چه د هغۀ په ژوند کښے د ميل د کاڼړى حيثيت لرى . دا معرکه د کمال زيو د اکازيو ديے سره د سردارئ د ننګ جنګ وو . په دے جنګ کښے فقير جميل بيګ چه لا فقير شوے نۀ وو د خپل پلار ورور او د خاندان او قبيلے د نور اولس سره شريک وو . او بنۀ په نره ئې د خپل سردار پلار حکم منلے دے . تورے ئې وهلے دى . په دے جنګ کښے چه کله شهباز خان د اکازيو په کلى اور پورے کړو او قدرت د جميل بيګ په زړۀ کښے د ښو خوئ نه د کوکے پيدا کولو موقع ور پلاس کوله نو څه دا سے خونړے منظر د جميل بيګ سترګو اوليد چه يو اړخ ته ئې پلار په ويشو سور زخمى پروت دے . بل اړخ ته ئې د تره زوئے د ساقى بيګ په ختو کښے مړ پاتے کيږى ورور ئې ژوبل ژوبل دے . په خپله ئې هم په لاس په غشى لګيدلے دے . ټول ښنګر سترے او تار په تار دے . بيا هم چه خپل

ئه تاريخ مرصع ص ۲۶۹ - ۲۷۰

پلار ورته حکم کوی چه مخکښے شه . ستا او د ورور په اوږ ودے دخپل اولس په حفاظت د ویستو ذمه واری ده نو دلاس ډوړ زخم ته نه گوری خوشحال خان وړاندے کیږی - دے ئے د ښنکو دنبال نیسی او دخپل پلار حکم ترسره کوی ؎ -

ددے جنگ نه پس که یو ارخ ته ئے د شکست غم په زړه کښے دے نو بل ارخ ته ورته دخپل عظیم پلار د مرگ صدمه وررسی - او ورسره ئے د داغم په مخه اخلی چه هغه ورځ به کله وی چه دخپل پلار د مرگ بدل واخلم - اگرچه جمیل بیگ د خوشحال نه کشر وو خو په عمرونو کښے ئے څه ددومره زیات فرق هم نه وو چه کښی د سرداری خیال به ئے په زړه کښے نه وی راغلے او بیا دداسے ترونو په موجودگئ کښے چه څه ډیر اخلاص ئے نه لرلو - ولے بیا هم دخپل خاندانی روایاتو د قدردلو په لړکښے په ډیره خوشحالئ دخپل مشر وړور خوشحال خان سرداری قبلوی او ورسره دخپل پلار د بدل اخستو جنگ ته ملا تړی هغه هم په داسے حالاتو کښے چه ددنیا نه ئے زړه تورشوے دے - او دجنت دسوزیږے پرے هم شوے دے -

دالاخیلو په جنگ کښے چه جمیل بیگ د پلار سره زخمی شوے وو کورته راغے - زخم ئے ښه نه شو - دخوشحال خان ددستاربندئ رسم ترسره شو - نو ددنیا وی چارے آخری مرحله ورته پاتے وه - دخپل وړور خوشحال خان سره روان شو - په اس سور په الاخیلو ورغے د پلار

---

؎ تاریخ مرصع ص ۲۶۹ - ۲۷۰

دغون بدل ئے واخستو او واپس سرائے اکوړې ته راغلو۔

په دغه ورځو کښے شاه جهان دهندوستان بادشاه وو۔ او دجګت سنګه دبغاوت دختمولو په سلسله کښے لاهور ته راغلے وو۔ جګت سنګه په دے مهم کښے دشاهي فوځونو سره دبرخے اخستو موقعه داکوړې دمنصب دارئ کورته هم په لاس ورغلے وه۔ خوځ له هره لوري ته تيار وو۔ دجميل بيګ په خيال کښے دا وو چه ګنی خوشحال خان ته نوے نوے دسردارئ منصب دريغاره شوے دے۔ ذمه دارئ ئے په سر دی۔ ډير سے ورانے چارے داولس ورته سمول دی۔ شايد چه خوشحال خان په دے مهم کښے د شرکت دپاره دے ورانده کړی ولے دخوشحال خان خټک خيال په خپله دتلو وو۔ يو خو په دے چه دهغهٔ دسردارئ اهليت شاه جهان په خپله اووينی او بل دمنصب دتصديق پروانه ورکړی۔ کله چه خوشحال خان ته دجميل بيګ دتيارئ حال معلوم شو نو ورته ئے جواب اوکړو چه په دے مهم کښے يا ته شرکت اوکړه

---

۱ تاريخ مرصع ص ۵۹۷ - دلته دافضل خان خټک دابيان څه مبهم غوندے دے۔ په دے وجه داخيال ترے راولاړيږي چه ګنی فقير بابا دخوشحال خان په تلو څه خفه شوے دے۔ حالانکه دا دے نه ورانده چه کله دشهباز خان دوفات نه پس خوشحال خان سردار منتخب کړے شو نو دخپل اولس نه علاوه دشيخ رحمکار رضا ورته هم حاصله ده۔ چه کله دبلی په جنګ کښے دپلار دبدل اخستو په غرض تلو۔ نو روبجے ئے دکاکا صاحب زيارت کړے وو۔ او دعاګانے ترے غوښتے وه۔ دهغے نه پس په جنګ کښے ورسره فقير بابا هم ملګرے وو۔ نو ددے خبرے هيڅ ثبوت نشته چه ګنی دفقير بابا دخوشحال خان سره چرته په څه موقع اختلاف راغلے دے

یا به زهٔ لاړ شم - دواړه دکوره بهر نه شو وتے - فقیر جمیل بیګ ورته
جواب اوکړو چه د تا تسله بنهٔ دی - زهٔ به پاتے شم - او دا هغه ساعت
وهٔ دکوم نه چه دجمیل بیګ دنوی ژوند ابتداء کیږی -

خان او نواب جمیل بیګ فقیر شو - دهغه ارادے دسرته رسولو
موقع په لاس ورغله - کوم چه ئے الله تعالی څه وخت وړاندے په
زړهٔ کښے راولاړه کړے وه - داکوړه خټک ودان کلے او دنوابئ کور نه ئے
دوه لاسه دوه پښے کړه په سر کړه - کومه برخه چه دمال او متاع وه-
که نغدے روپئ وے که کالے وو که غوا مینښے اسونه وو - هرڅه په هغه
ساعت په فقیرانو اووېشل - خپل مېږ او زامن ئے په دے نوے اراده
خبر کړل هغوئ هم ورسره راضی شول او د ابادئ نه بهر اووتهٔ - د
سرائے اکوړی نه دجنوب په لوړ دَ غرونو په مینځ کښے یوه دره ده
چه په چشمئ مشهوره وه - دا اوبو یوه چینه پکښے وه - نور د
پلوسو ځنګل وو - هیڅ آبادی پکښے نهٔ وه - بال بچ ئے دلته راوست
او په خپله دحضرت شیخ رحمکار کاکا صاحب دربارته حاضر شو - چا
چه ورته دجنت دسور بشارت ورکړے وو - چونکه دا چشمئ دَ
کاکا صاحب دربارته نزدے وه نو په تلو راتلو کښے ورته اسانی وه-
چه مقصد ئے نوړ دخپل مرشد کاکا صاحب خدمت کول وو -

کله چه دفقیر جمیل بیګ زړهٔ ددنیا نه تور شو او دمعرفت
په رڼا منور شو نو په ابتدا کښے پرے دجذب یو داسے حال راغے چه
خلقو به وے چه لیونے شو - حالانکه مقصد ئے دخپل نفس سره جهاد
کول وو - هغه طاقتور نفس کوم چه دخانئ او سردارئ رنګین خوبونه

بېدل وو - د دے نفس وژل څه اسان کار نه وو - او فقیر بابا په دے راز خبر وو چه مخکښې ورته یو سخت او ګران جهاد پروت دے - دا جهاد به ئے داسے کاوه چه صحرا ته به اووتو - که خوب به پرے دیره غلبه اوکړه نو یا به ئے ځان په لړم او چیچلو یا به چرته په میږتوڼ خلاست - ددے نه سیوا به ئے روژه داسے ساتله چه دوه دوه میاشتے به ئے هیڅ نه خوړل - او که خوړل به ئے نو داسے خوراک کوم چه د آرام په ځائے نفس ته ازار ورکوی - ترڅو روژه وخته پورے ئے دا وظیفه وه چه روژه به ئے ماتوله - په خوړو کښې به ئے د ومره مالګه ګډه کړه چه د آرام په ځائے به ئے یو شدید اذیت ورکړو - ددے سخت خوراک د شدت اندازه ددے نه کیږی چه فقیر بابا خپل دغه خوراک د روژے د افطار په خیال ایښے وو - چرته یوه پیشو داغله او ئے خپل هغه پیشو چه اوده ساه لری چه دا خوراک ئے اوکړو نو په هغه ځائے ارتاو شوه مړه شوه - ددے نه د فقیر بابا د رومبئ ورځو د نفسی جهاد اندازه معلومیدے شی -

څه ورځے پس ئے د خپل بال بچ د پاره په چشمئ کښے یو کور جوړ کړو - ورسره ئے یوه حجره او یو جماعت د عبادت د پاره ساز کړو -

سره د جذب[2] د دے حالت او لیونتوب فقیر بابا د خپل عبادت نه

---

[1] تاریخ مرصع ص۵۹۷ [2] ددے نه اندازه کیږی چه په فقیر بابا د جذب حال مستقل نه وو - کله کله به پرے دا حال راتلو او د هغه روایتو نو نفی کوی - په کومو کښې چه ورته خلق مستقل لیونے وائی -

غافل شوے نۀ وو - په حجره کښے ورته قرآن کریم د فقهی کتابونه پړاو وو - چه هغه د شریعت د مطالعے ثبوت وړاندے کوی - دا حجره د هغۀ خلوت وو - په دے خلوت کښے به ئے شپه او ورځ عبادت کولو بل چا ته اجازت نۀ وو چه دے خلوت ته ورشی - یواځے په هغه وخت به د خلوت نه راښکاره شو چه په جماعت کښے به آذان اوشو. اکثر به ئے فرض په جماعت کښے ادا کړل سنت به ئے په خلوت کښے اوکړل یا به ئے ټول مونځ په جماعت کښے ادا کړو - هغه هم داسے چه یا به دے امام شو او یا به څوک بل څوک امام شو - یوازے د غه وخت به داسے وو چه د دۀ دیدن ته به څوک راغلی وو. هغوئ سره به ئے ملاقات اوکړو او بیا به واپس د خپلے حجرے خلوت ته ننوتو.

اګر چه فقیر بابا نورمحمد ؒ د خدائے په لاره کښے خیرات کړی وو - ولے چه دائے طریقه وه - اکثر به ئے خیرات ونه کول نو د دے دپاره ئے ځان سره د نهال پورے[١] هغه کلے ساتلے وو کوم چه ورته د پلار نه په میراث کښے پاتے شوے وو - کومه سالانه چے به د دے کلی نه راتله - که زر روپئ به وے که د ولس سوه به وے په هغه ورځ به ئے خیرات کړے - په کومه ورځ چه به ورته ترلاسه شوے ولے دومره خیال به ئے ضرور ساتلو چه د نهال پورے دا جائیداد یواځے د دۀ نۀ وو - دا جائیداد د دۀ د بال بچ حق وو چه د نیکۀ نه ورته

---

[١] د نهال پورے کلے د جهانګیرے او خیراباد سره نزدے دے - او فقیر خیل میاګان پکښے اوسی.

پاتے وو. نو د بچو خرڅ به ئے د دے کلی په پیسو کیدو کوم چه د
هغوئ برخه وه .

فقیر بابا چه د فقر لاره اختیار کړه نو ورسره په دے فقیرئ
خپل اولاد هم راضی وو . دَ خانئ په کور کښے لوئے شوی او په ناز
پالنې شوی نه اوس د خامتا د جامو او د اوربشو د ډوډئ نه سیوا بل
څه نه وو حاصل . دا به ورته فقیر بابا ورسول . د فقیر بابا خپله
جامه هم د خامتا وه . ترزانو پورے اوږد د خامتا قمیص چه به زوړ
شو او ځائے په ځائے به اوشلیدو نو تو ټے به ئے ورواچولے . هم به
ئے پرتوګ د خامتا وو . هغه هم د شریعت مطابق ټیټکے دَ خامتا دوه ګزه
او یوه شړئ دا د هغه خان او نواب جمیل خان د فقیرئ جامه وه . د دے
جامے نه علاوه چه به نور څه په کوټو ورتله به مسکینانو او غریبانو
به ئے تقسیم کړه .

د فقیر جمیل بیګ بابا په فقیرئ کښے هم د هغهٔ خپل یو خاص
انداز وو چه د خپل خاندانی سخاوت روایت ئے په دے فقیرئ کښے
هم ژوندے ساتلے وو . د غوا د غوړو د وریژو ذخیره به ئے او کړه
دَ پسونو مږونو سره د شکرو به ئے په ډیر مقدار کښے جمع کړه . او
په یوهٔ خاص ورځ به ئے د کلی اولس محتاجانو غریبانو ته دعوت
ورکړو . په دے ورځ به چه د چا څه خوښه وو پخول به ئے او خوړل
به ئے . د دے سره سره ئے د سخاوت یوه بله لاره هم اختیار کړے
وه . هغه دا چه د کپړو او نورو اجناسو ذخیره به ئے جمع کړه نو بازار
ته به او واته . د وکان به ئے اونګوهٔ د چا چه به څه ضرورت وهٔ

فقیر بابا به ورته په خپل لاس هغه خیر ورکوۀ - کله به دخپلو شاګردانو او مریدانو سره دجرګې په صورت کښې کلی په کلی ګرځیدۀ - دنیکئ او ښے لارے تلقین به ئے کوؤ - داولس دحاله به هم خبرید و چا چه به دلاچارئ نه وادۀ نۀ شو کولے - دهغه دوادۀ بندوبست به ئے اوکړو او که خبر به شو چه دچا په کور کښې په وادۀ ولاړه پیغله ده - دڅۀ مجبورئ له کبله ئے وادۀ نۀ کیږی نو فقیر بابا به ئے په پلار جرګه اوکړه - امداد به ئے ورکړو او هغه جینئ به ئے چا ته وادۀ کړۀ - چونکه دفقیر بابا په دے طریقه کښې دهغه یو غم او سوچه اخلاص موجود وو نو کۀ چا به ترے انکار اوکړو هغۀ ته به خامخا څه ضرر پیښیدۀ - غرض دا او دداسے نور نیکو کارو ترسره کول دفقیر بابا دژوند مقصد وو چه دهغه وخت دخلقو داصلاح دپاره

---

ل وائی چه فقیر بابا یومځل داسے یو سړی ته ورغے - دچا لور چه په وادۀ ولاړه وه - او وادۀ نۀ وادوله - فقیر بابا ورته جرګه اوکړه - هغه سړی ورته دا بانه اوکړه چه ما سره فی الحال دومره سامان نشته چه لور پرے وادۀ کړم - فقیر بابا ورته اووے چه زما څۀ وس کیږی دریه ئے کړم - خو دا لور دِ وادۀ کړه - چه دشرے حکم دے - دهغه سړی رضا نۀ وه - فقیر بابا ئے په ځائے پریښودو او دپیښور په لوری روان شو - په لار کښے ورته دشمنان ناست وو - په غشو ئے اوویشتو او مړ شو -

(تاریخ مرصع ص ۵۹۸ - ۵۹۹)

ئے دالائي اختيار کړے وۀ - د دے دوزګارۍ سره سره فقير بابا د خپل مرشد حضرت شيخ رحمکارؒ د دربار حاضري به هم خامخا کوله - چه په دغه وخت کښے دَ تصوّف او د فقر د ټولو نه لوئے مکتب په پښتونخوا کښے هم دا وو او په دے مکتب کښے د فقير بابا خپل خاص مقام وُو -



ط دے ته که څوک ليونتوب وائي نو هغه دِ
په خپل عقل شکمن شي -

# حضرت شیخ رحمکار کاکا صاحبؒ د تصوف او سلوک طریقت مکتب

**دربار** په دغه ورځو کښے کاکا صاحب د ختمکو خصوصی او د نورو پښتو عمومی پیر وو او ځان ته د طریقت او تصوف یو مخصوص مکتب فکر وو.

کاکا صاحب چونکه مادر زاد ولی وو او طریقه ئے اویسی وه۔ ولے هر کله چه بنده په اویسی طریقه کښے په خپله نو په دے مخصوصه لاره د حقیقت تر بامه رسیدے شی ولے د طریقت د اصولو مطابق چاته بیعت نهٔ شی ورکولے۔ نو په دے غرض کاکا صاحب د خپل پلار بهادر بابا نه په خاندانی سلسله سهروردیه کښے هم بیعت کړے وو۔ په چشتیه طریقه کښے د خپل نیکه مست بابا نه ماذون وو۔ د دے نه علاوه ئے د نورو طریقو اجازت هم حاصل کړے وو۔ او په دربار کښے به ئے د حقیقت د

---

ل د کاکا صاحبؒ په اکثرو تذکرو کښے د هغوئ د سهروردیه، چشتیه او اویسی طریقو ذکر دیر راځی۔ په یو روایت کښے واځی چه د هغه وخت څلور واړه مشهورے طریقے یعنی قادریه سهروردیه چشتیه او نقشبندیه ورسره وے۔ ولے زما تر نظره د قادریه او نقشبندیه طریقو کښے چاته د کاکا صاحب اجازت ورکول نهٔ دی تیر شوی.

شفقت د مرے لارے ډېرې د پاره بندوبست موجود وو۔ شهباز خان تهک په ښځه هم د کاکا صاحب نه بیعت کړے وو او خاص مرید ئے وو او د خپل اولاد تربیت ئے هم کاکا صاحب ته سپارلے وو۔ خوشحال بابا هم د کاکا صاحب نه بیعت کړے وو او په مریدئ کښے ئے وو۔ [1] وے نقیر بابا چه کله دنیا پریښودہ نو بیائے خپل باقی عمر د خپل مرشد په قدمونو کښے تیرولو ته اوسپارهٔ۔ او چه څنګه ورسره د دهٔ مینه وه هغه هومره ورسره د خپل مرشد هم وه۔ په ټولو مریدانو کښے ئے خاص مرید او جانشین فقیر بابا وو۔ وائے چه دے ئے د لنګر خزانچی هم وو۔ خو د دے خبرے څه سمه اندازه نهٔ ده لګیدلے۔ د ومره قدرے کار دے چه کله به څوک محتاج د امداد په غرض کاکا صاحب

---

[1] د جهانګیری په جنګ کښے چه کله یوسفزو ماتے اوخوړه نو د خوشحال بابا داخیال وو چه په سیند ورپورے وځی او د شانه پرے حمله اوکړی. ولے کاکا صاحب د دے اجازت ورنهٔ کړو او خوشحال بابا د کاکا صاحب حکم اومنهٔ۔

( تاریخ مرصع ص ۲۸۸ )

د دے نه علاوہ د کاکا صاحب د وفات نه یوه شپه اګاهو ورسره یوائے خوشحال بابا په خلوت کښے تیره کړے وه۔ د وفات نه پس هم د تجهیز و تکفین په وخت خوشحال بابا سره د نورو خاصو مریدانو موجود وو۔

( تذکره شیخ رحمکار ص ۱۱۹ )

ته راغے - نو فقیر بابا ته به ئے اوسپارلو - او دۀ به ئے یا په کرامت
اود یا په نوره طریقه امداد اوکړو - د کاکا صاحب په زمانه کښے یو بل لوئ
ولی او مجاهد حضرت اخوند چالاک وو څوک چه د بنیر په علاقه کښے اوسیدو
سره په غزا سر وو - واٸ چه یوه ورځ دے په څۀ غرض د امتحان
کاکا صاحب ته راغے - خیرے اترے ئے ورسره اوکړے چه مطمئن شو
نو بیا ئے ورته اووے چه تۀ زمونږ سره په غزا کښے برخه ولے نۀ اخلے
کاکا صاحب ورته اووے چه دتا د غزا خپل رنګ دے او زما د غزا خپل رنګ
دے او په غزا کانو لګیا یو - په آخر کښے تر ے اخوند چالاک د غزا
د پاره د زړو په رنګ کښے د امداد درخواست اوکړو - نو کاکا صاحب ورته
فقیر بابا ور اوښودو - چه د چشتیه په غروتو کښے زما فقیر دے هغه
ته ورشئ امداد به مو اوکړی - اخوند چالاک چه سره د خپلو ملګرو د چشتیه
په لور روان شو نو په دغه وخت کښے فقیر بابا د خپل کور نه بهر د پلوسو
په ځنګل کښے سره د خپلو ملګرو د خپلے چشتیه د سلسلے خپلے مخصوصه سماع[1]

---

[1] سماع یعنے ساز وسرود اوریدل د چشتیه طریقے سنت طریقت دی او د چشتیه د
شیخانو د سماع ذوق ډیر دوایتونه موجود دی - د خواجه حسن بصری سماع ډیر
خوښه وه - چه کله به ئے اوریده نو په وجد کښے به راغے - د ټیل به ئے چه وجد
یو راز دے - چه کله په زړۀ کښے راشی نو ورته حرکت ورکوی - دا به ئے هم ویل چه
سماع څوک د حق په خاطر اوری نو حق ته رسی او چه څوک ئے د نفس د پاره اوری نو
زندیق شی - منع سماع نغمه دنے میکند فقیه . بیچاره پے نه برد بسر نعمت تیه
(مولانا جامی)

ودیده - فقیر بابا د کشف په ذریعه د اخوند چالاک د راتلو نه خبر شو
نو سازیانو ته ئے اووے چه دا ساز بند کړئ ځکه چه اخوند چالاک دا نهٔ
خوښوی - په دے چه د هغهٔ طریقه دا نهٔ دهٔ او د لته د اخوند چالاک
په زړهٔ کښے هم دا وو چه د سماع د جائزے او ناجائزے په حقله به د
فقیر بابا سره بحث کووم - کله چه اخوند چالاک د فقیر بابا ترځا یه
راغ - او ئے لیدهٔ چه دے د خپلو مریدانو سره ناست دے ذکر و
عبادت کوی - و لے د ساز و سرود سامان ئے یو ے خوا ته ایښے دے
غږ وی ئے نا څو د خوا وُ شا د پلوسو اونو اونوړو بوټو نه د ساز آواز
راخیژی - اخوند چالاک چه دا اولیدهٔ حیران شو څهٔ ئے اونهٔ وے
نو فقیر بابا ورته په خپله اووے چه زهٔ سماع اورم خو تاسو ورته
بدعت وایئی ما خو د ستا په خاطر دا بدعت بند کړو و لے دا اونے بوټی
چه بدعت کوی - دے ته به زهٔ څهٔ اووایم - اخوند چالاک غلے شو
اووے ویئل چه تهٔ څهٔ کوے هغه درست دی - خو زهٔ خو درته
حضرت کاکا صاحبؒ په یل غرض رالیږلے یم - فقیر بابا ورته اووے چه
خبر یم - څو مره ذروکی او ښادروانه چه درسره دی - اوئے غوړوئ
هغوئ چه ښادروانه اوغوړول - فقیر بابا ورته د کانړو او شګو نه ډک
کړل - و ے ئے چه ځئ دا اوتړئ - دوئ هم دا سے اوکړل اوتړ ے

---

۱ حضرت اخوند چالاک د حضرت اخوند پنجو صاحب اکبر پورے مرید وو او
عمر ئے د کوهستان د کفارو سره په جهاد کښے تیر کړے دے -
(تذکره شیخ رحمکار ص ۷-۱)

دوان شول چه تر څهٔ حده راغلل نورو ملګرو ئې پتوس اوکړو. چه یې
لیونی ته دِ داوستي يو. مونږ ترې دوپئ غوښتې اوهغهٔ راته کانړی شي
راکړل. اخوند چالاک ورته اووے چه څهٔ راز به پکښې خامخا وی. دی
چه په هغه وخت خپل پنډونه اوسپړدهٔ. اوئې کاته نو حیران پاتے
شو ځکه چه واړه کانړی او شګے سرهٔ اوسپین وو. نو دا دفقیر بابا
خزانچی[۱] توب وو چه د کاکاصاحب په دربار کښے ئے کوو یعنے خزانچی خو
حساب کتاب کوی او د فقیرانو حساب کتاب[۲] سره څهٔ وی.

---

۱ په مناقب فقیر. مناقب شیخ رحمکار کښے او ځنے نورو روایتونو کښے فقیر بابا ته د
کاکاصاحب د لنګر خزانچی ویلے شی. د مصنف په خیال فقیر بابا د کاکاصاحب د اسرارو او
رازونو د خزانو خزانچی وو. ځکه نهٔ خو کاکاصاحب د لنګر چرے حساب ساتلے دے اونهٔ
د فقیر بابا د حساب کتاب سره څهٔ تعلق پاتے شوے دے.

۲ تاریخ مرصع ص ۵۶۹. وائی چه په یوه موده شیخ جیو یعنے حضرت شیخ رحمکار په حال
راغلے وو. لکه د دیګ به یشیدهٔ. هره ورځ به ئے پښیتهٔ غواګانے حلالولے عام خیرات وو.
بنیادمو او نورو مخلوقاتو به غوښے خوړے چه ناڅاپه یوه ورځ شهباز خان خټک په خپل عراقی
اس سور د کاکاصاحب دیدن له ورته راغے. چه د کاکاصاحب دا حال ئے اولیدهٔ نو هغه خپل اس
ئے ورته په نذر کښے وړاندے کړه. کاکاصاحب د هغه اس د حلالولو حکم اوکړو. ځنے عالمانو
او مریدانو ورته اووئے چه دا قیمتی اس دے. زر روپئ قیمت لری که دا خرڅ کړے شی نو به دے
به ډیرے غواګانے اخستلے شي دا به فائدهٔ مند وی. کاکاصاحب دا خبره قبوله نهٔ کړه او ورته ئے فرمائیل
چه زما پیدا ونت الله تعالیٰ د سوداګرئ د پاره نهٔ دے کړے. تهٔ دا اس په خرڅولو به سوداګر
شم حکم ئے د اس د حلالولو اوکړهٔ. او شهباز خان خټک په خپل لاس حلال کړو.

د جذب و لیونتوب په ورځو کښے به فقیر بابا اکثر د کاکا صاحب سره وو کله کله به پرے داسے حال راغے چه په ځان به نه پوهیدو۔ په کاکا صاحب به ئے غور ژنګونه ورکول او هغه به ورته مسکے شو۔ هم په داسے حالت کښے به کله کله د چیله ځانه فنا شو[۱] او د فنا فی الشیخ درجے ته به اوختو وائی چه یوه ورځ د کاکا صاحب سره په اس سوار وو چه حال پرے راغے نو کاکا صاحب ته وائی چه یره کاکا صاحب ته ئے او که زه ئیم۔ ولے حقه خبره داده چه په معنوی انداز کښے دے بیا روستو هم کاکا صاحب شو۔

ګوره آئینے ته چه هم تا به تا ته ښنائی

یار ځینی سبب دے رسیدل غرض دی ځان ته

(اکرم فاروق)

په دغو ورځو کښے د کاکا صاحب مقام د قطب عالم[۲] وو۔ د غوث[۳] نه قطب مدار

---

۱۔ هستی ئے من رفت وخیالش بماند　　این که تو بینی نه منم بلکه اوست

۲۔ مناقب شیخ رحمکار قلمی ص ۱۱۔ مناقب فقیر ص ۸۔ تاریخ مرصع ص ۵۹۱ په هر زمانه کښے په ټوله دنیا کښے د ټولونه لوئے یو قطب وی چه قطب عالم یا قطب کبری ورته وائی۔ علوی او سفلی عالمونو کښے تصرف لری که چرته د قطب وجود د وخت له منځه اوځی نو دنیا نظام به ګډ وډ شی۔

۳۔ په مناقب شیخ رحمکار قلمی کښے ورته غوث اعظم او قطب عالم دواړه لیکلے شوی دی۔ هم داسے په مناقب فقیر جمیل بیګ کښے ورته هم دواړه مرتبے لیکلے شوی دی۔ د ځنی بزرګانو په نزد قطب او غوث دواړه یو شے دے۔ ولے محی الدین ابن العربی قطب الاقطاب او غوث جدا جدا ګڼړی۔ ځنے عالمان وائی چه قطبیت او غوثیت اګرچه جدا جدا منصبونه دی ولے په یو سری کښے راټولیدے شی۔

او قطب مدار نه تر قطب العالم[۱] او قطب الاقطاب پورے رارسیدلے وو.
ځان ته ئے د طریقت خپله مخصوصه لاره او انداز وو. د طریقت د اصولو
پیروی ئے کوله ولے خپل خاص انداز ئے هم برقرار ساتلے وو. ځکه چه
یوه ورځ ترے خپل زوئے حضرت حلیم ګل بابا پټوس اوکړو چه یا حضرت
د تاسو پیر څوک دے. وائی چه په جواب کښے ئے راته او وے چه د حق تعالیٰ
یو بنده وو. هاتفی آواز پرے او شو چه بادشاهی د ځمکے اخله که فقیری
چه زما بندګی ده. ځواب ئے ورکړو چه بندګی[۲]. دا تمثیلی انداز د کاکا صاحب
د خبرو خاص اسلوب وو. د ځان په حقله به چه ئے هم څه وئیل نو په تمثیلی
انداز کښے ئے وئیل هم دغسے یوه ورځ ترے حلیم ګل بابا بیا سوال اوکړو چه
یا شیخ جیو د تاسو پیر څوک دے راته ئے او فرمائیل چه درد د نه وینم پیری ے
پیرانو ته بخښلے شیخی مے شیخانو ته او سلوک مے سالکانو ته بخښلے ما خپله غاړے
ته د حق تعالیٰ د بندګئ رسن اچولے دے چه دا رسن مے د غاړے او نه شلیږی. وائی
چه د دے نه معلومه شوه چه شیخ جیو په مقام عبودیت[۳] کښے وو.

---

۱ چونکه د کاکا صاحب طریقه اویسی وه او قطب عالم هم وو. نو په دا دواړه طریقه
قطب د حق تعالیٰ نه نیغ په نیغه او د څه واسطے نه بغیر فیض حاصلوی.

۲ تاریخ مرصع ص ۵۶۷

۳ چه کله ولی د سکر جذب فنا او د سلوک د نورو منزلونو نه تیر شی. الله سره
واصل شی. باطنی کمالات حاصل کړی او دنیاوی ژوند ته بیا راستون شی او د الله
تعالیٰ په هدایت د مخلوق په لوری متوجه شی. د شریعت ژوند خپل کړی.

الغرض د تصوف او طریقت په دے خاص مکتب فکر کښے فقیر جمیل بیګ د سلوک او معرفت سبق لوستے وو - او د فقر تربیت ئے موندلے وو - په دغه وخت کښے دا خاص مکتب فکر په ټوله پښتونخوا بلکه هندوستان کښے یو مثالی مکتب وو - ډیرے ورانے چارے چه د پادشاهانو په کوششونو به نهٔ سمیدے دلته به سمے او هوارے کړے شوے - او دا یو مخصوص مکتب یعنے حضرت کاکا صاحب دا سے وو چه په څلور وخت کښے ئے د یو روایت مطابق څلور درے سوه مریدان د ولایت مختلفو درجو ته رسولی دی - او څلور خاص مقام قطبیت ته ئے چه کوم د وه کسان رسولی وو - په هغو کښے یو فقیر جمیل بیګ وو -

تر او سه پورے د فقیر جمیل بیګ په حقله دا مشهوره وه چه دے لیونے او مجذوب وو - خو دا خبره درسته نهٔ ده - ځکه چه په فقیر بابا د جذب حالت راغلے ضرور دے - ولے عمری مجذوب نهٔ دے پاتے شوے جذب د سلوک په لاره کښے یو عارضی مقام دے - فقیر بابا د دے مقام نه تیر شوے دے او باقی ډونډ ئے د سالک په مرتبه کښے تیر کړے دے -

لکه څرنګه چه وړاندے اوویلے شول - د هغه وخت عالمان او صوفیان په دے خبره ګواه دی چه د سالک په مرتبه کښے فقیر بابا د قطب الاقطاب په درجه کښے وو - دلته ئے یو ځے دا نه چه ګنی نور خلق بیعت کړی دی - مریدان ئے هم د ولایت تر مقام رسولی دی - د تصنیف و تالیف کار ئے هم جاری ساتلے دے او د اسلامی تصوف د فلسفے

---

ئے تاریخ مرصع ۵۹۹ -

رساله ۷۷ ماجب از عقاب خټک ص ۵۸

وحدت الوجود باریک مسائل ئے په ښکل کتاب نور محمدیه کښے بیان کړی دی . ددے کتاب (نور محمدیه) دځنے برخو نه دا معلومیږی چه دے په تصوفی فلسفه کښے د وجودی نظر ئے حامی وو . یو کتاب ئے دحضرت کاکا صاحب دحالاتو او کمالاتو سره سره دنورو مشهورو اولیاء دحالاتو په باب هم لیکلے دے چه دے ورته دل تذکرة الاولیاء واځی . ددے نه علاوه ئے دفارسئ په شعر کښے مناقب شیخ رحمکار هم لیکلی دی . چه اوس دا کتاب نایاب دے او شمس الدین ئے په ښکل کتاب مناقب شیخ رحمکار کښے ذکر کړے دے .

فقیر بابا د جذب او سلوک تر مینځه دسکر په حالت کښے هم پاتے شوے دے . او ددے سکر په حالت کښے ېړے دهغه وخت عالمانو څه چه ښلو زامنو او وریرونو هم تنقید کړے دے . او هم ئے ورسره مخالفت کړے دے . وے دسکر دا حالت ئے عارضی وو . ددے نه پس فقیر بابا دسالک په مرتبه کښے ددنیا په کاروبار کښے پوره برخه اخستے ده .

اګرچه اوس دفقیر بابا داحترام دومره خیال نه ساتلے کیږی

---

ؑ سکر دمشاهدے په ابتدا کښے هغه واردات ته واځی دکوم له مخه چه دعقل دنړا معطله او مقیده شی . دشهود نور په سالک دومره غلبه اوکړی چه د ادراک حس ئے معطل شی .

اصل شهود وشاهد و مشهود ایک ہے    حیراں ہوں پھر مشاهدہ ہے کس حساب میں

(غالب)

وه په هغه وخت کښې ئې د خپلو مريدانو د حلقې نه سيوا په خپل خاندان کښې ډېر زيات قدر او احترام[۱] وو. په دې خاندان کښې چه به څوک وړانه راپيښه شوه او نه به جوړيده نو فقير بابا به پکښې مداخلت اوکړو او نوړ به څه چه خپل مشر وروړ خوشحال خان خټک هم د ډېر احترام له وجې د فقير بابا خبره منله[۲].

۱ چه پکښې د شيخ ياران دی — هغه غرونه ګلستان دی
چه مې وروړ پکښې طاعت کا — هغه غر د خدائې جنت کا
خدائې دې غم ورځنې يوسی — خوش خرم د پکښې اوسی
چه د وروړ مې پر مقام دې — په هغه غر زما سلام دې
که ورسې که مې وريرو نه — که زما د وروړ کوروں نه [فراقنامه خوشحال]
په همه وُ مې سلام دې — يو سلام د زړهٔ تمام دې

۲ تاريخ مرصع کښې د کادی او بادی په حقله افضل خان خټک ليکلی دی چه خوشحال بابا ته ئې د بهرام د خانئ سفارش کړې وو. د تاريخ مرصع ص ۹۳ اؤ ۹۴ نه دا معلوميږی چه کادی او يادی چه په دغه ورځو کښې د فقير بابا سره فقيران شوی وو. جوړ د فقير بابا په سفارش خوشحال خان خټک ته دا وئيلی وو چه بهرام پياز وو. اوس ئه خوږ شوې دې. مطلب دا وو چه اوس خوږ دې که ته ئې قبول کړې. د بهرام د کاکا صاحب زيارت ته راتلل او د خوشحال بابا د نظام پوړته ورتلل په دې کښې د کادی او بادی نه زيات د فقير بابا سفارش بنکاری ځکه چه هغه د خاندان په دې بې اتفاقئ په خوا خوا رنجيده وو. بهرام د خوشحال زړهٔ د ومره اوګټلو چه په ځان ئې مئين کړو او خوشحال بابا ورته خانی حواله کړه. اګرچه په تاريخ مرصع کښې واضح ذکر نشته ولې اندازتا داوئيلی شو چه د بهرام په لور د خوشحال بابا په راضی کولو به د فقير بابا سفارش ضرور اثر لرلې وی. د خانئ حواله کولو سره چه خوشحال بابا کوم وصيت او نصيحت بهرام ته اوکړو. د هغې يو دوه شعرونه

ز ما زړهٔ له چانه روغ نهٔ دې بهرام — له هر چا سره مې زيست دې له ناکام
نوکری ځوانی دادواره لکه بام دی — په پيری ئې کښې له ما ولاړل دواړه بام
اوس دادواړه بامه ستا دی نه اره کړه — غافل مهٔ شه يو زمان ترصبح د شام

دچا ذرهٔ به چه دنیا نه موړ شو نو دا کوړی و دان کلے به ئے پرینښو او چشمئ ته به راغ . ژوند به ئے دَ فقیر بابا تر څنګه تیر وُو . دخوشحال خان خټک عالمه فاضله لور تاج بی بیٔ چه دخوشحال بابا د مخزورئ په ژوند کښے نادوغه شوکا نو وصیت ئے دا اوکړو چه دمرګ نه پس ما چشمئ ته د فقیر بابا دربار ته اورسوئ . نورخوپرینږده چه د بهرام غونډے ناخلف او منافق هم په زړهٔ کښے د فقیر بابا قدردان وو . او وروستو پیړیو پیړیو دده خاندان افراد د فقیر بابا ډیر احترام په خپلو زړونو کښے ژوندے ساتلے دے .

**مقام**

دنورو شواهدو او سندونو د دغه وخت نه علاوه ټنے واقعات هم داسے دی چه د فقیر بابا قطبیت پر مسلم دے . فقیر بابا د سلوک په درجو کښے د قطب الاقطاب مقام ته رسیدلے وو . او دغه داسے چه ددهٔ مرشد کاکا صاحب په خپله قطب الاقطاب وو . او څرنګ چه د تصوف طریقه ده د صوفیانو د رواج مطابق هر ولی چه د خپل ولایت ذکوة اوباسی . نو یو یا دوه کسان به د خپل ځان په رنګ کوی . یعنی خپل مقام ته به ئے رسوی نو د فقیر بابا تر دے مقامه رسول که هر څو دنورو شواهدو نه هم ښکاره دی . ضروری ښکاریږی یوه دا واقعه هم ده . فقیر بابا دغه واقعه په خپله بیان کړے ده . وائی چه یوه ورځ

---

۱ تاریخ مرصع ص ۳۱۵

۲ تل صحبت کا دنیکانو چه لائق دے دجنت کا
کا مکارشپه او ورځ په زړه کښے دخپل یار زیارت کا

دخپل مرشد حضرت کاکا صاحب سره تنها په خلوت کښے ناست ووم - ناڅاپه ے د شیخ رنګ اولیده چه تر جاے پورے ئے ټول رنګ بدل او متغیر شو او تک زیړ شو - یو ساعت پس چه واپس بیا په خپل حال راغے نو زه په زړه کښے ډیر زیات حیران شوم چه دا څه وو - شیخ رحمکار راته اوفرمائیل چه په تا به هم داسے حال راشی - لکه څرنګه چه دِ زه نن په تنهائی کښے اولیدم - ولے چه هرکله په تا دا حال راشی نو چا ته به ئے ښکاره کوے نا - یو ځے خپلے مور بی بی ته به دِ دا حال واے - څه موده پس چه زه په چشمئ کښے په خپل خلوت کښے ناست ووم په زړه کښے ے راغلل چه شیخ جیو نو ماته وئیلی وو چه داسے حال به په تا هم راشی - ولے په ما خو رانغے - په زړه کښے ے دا خبرے تیریدل ووچه هغه حال راباندے راغے - چه ځان ته ے اوکتل نو هم هغه رنګے ووم لکه څنګه چه ے شیخ جی لیدلے وو - خپلے مور ته ے خبراکړو - هغه چه راغله زما رنګ ئے اولیده نو په ژړا شوه - وے ئے چه دا په تا څه اوشو. نو ما ورته دخپل مرشد شیخ جیو هغه قیصه تیره کړه - پس له هغے ئے زړه په قلاړ شو -

ددے نه علاوه فقیر بابا د کاکا صاحب د نورو ډیرو رازونو هم رازدار وو - او هغه رازونه داسے وو چه د فقیر بابا نه علاوه بل چاته نه وو معلوم -

نو هرکله چه حضرت کاکا صاحب لکه چه وړاندے ئے ذکر تیر دے په مقام عبودیت کښے وو او تر خپل مقام ئے فقیر جمیل بیګ رارسولے وو خامخا به فقیر بابا هم د عبودیت په مقام متمکن شوے وی - که چرے

دے په مقام عبودیت کښې وو نو بیا داخبره درسته نهٔ ده چه فقیر بابا
مجذوب لیونے وو۔ صرف دومره قدرے کار دے چه فقیر بابا د خپل
طاقتور او عظیم نفس د زور ماتولو دپاره کوم اذیتونه په ځان
ز غملی دی هغې ته روغ خلق کوته په خولهٔ وو۔ د خوراک او جامے نه
علاوه د فقیر بابا مستقلے په میاشتو میاشتو روژے ساتل۔ په هفتو
هفتو ویښې پاتے کیدل۔ او هغه هم داسے چه خوب به پرے غلبه اوکړه
نو په مینړه تون به څملاست۔ مینځ ته به ورته په غوږونو، پوزه او
په خولهٔ ورتلهٔ او د رحمکانړ د ترس ناک زړهٔ بناغلی فقیر به وژل نه۔
د دے نه علاوه به سره د خپلو مریدانو د غرونو په لور اووتهٔ۔ ځان
به ئے په شړی کښے او نغښتهٔ۔ د دنګو دنګو غونډیو نه به ئے د
تیږو تیکو په سرونو ځان رغړ وو۔ نو کهٔ دے کار ته څوک لیونتوب
وائی۔ وائی دے۔ ولے د ژوند او نفس سره د جهاد کوونکو طریقه ده
او بل دا چه د روح او جسم تر مینځه د توازن قائمولو یو ریاض او عمل
دے۔ د هندی تصوف تاریخ په دے ګواه دے چه جوګیانو به ځان
ته اذیت ورکوو۔ نو ډیرے سختے لارے به ئے اختیار ولے۔ تر دے چه
ځنے کسانو به یو ځل د خپلو لاسونو موټې بند کړل۔ تر دومره موده
به ئے بند ساتلی دو چه نوکونه به ئے نوے شول او د تلی نه به
ئے پورے راپورے او وتل۔

مطلب دا دے چه فقیر بابا مجذوب مستقل نهٔ وو۔ فقیر وو او
د فقر د تقاضے له مخه ئے چه د خپل نفس سره کوم جهاد کړے دے۔
هغې ته خلقو د لیونتوب په نظر کتلی دی۔ اګر که ځنے داسے کارونه ئے

هم کول. چه د عقل په موجب خالص د لیونو وو. ولې حکمت به ئې په آخر کښې ښکاره شو. نو د اسې کارونه چه څه غټ حکمت په ځان کښې پټ لري هغه ته د لیونو کارونه نهٔ شي ویلې کیدې ځکه چه د لیونو کارونه بې حکمته او بې معنې وي او د فقیر بابا د جذب د حالت یو کار هم د حکمت او فلسفې نه خالي نهٔ ښکاري. البته دومره وه چه د کال ئې څلور برخې کړې وې. یعنې کال ئې په درې درې میاشتو کښې تقسیم کړې وو. په دې لحاظ ئې د کال په څلورو دورونو کښې د فقیرۍ او د مجاهدې دا عمل جاري ساتلې وه. په وړومبۍ دوره کښې به خلوت ته ننواتهٔ او بل چا ته به اجازت نهٔ وو چه د ننه ورغلې وې. دا درې میاشتې به ئې چله کشي اوکړه. د دریو میاشتو په بل دوره کښې به ئې خیراتونه کول قربانۍ به ئې کولې. هم د بنیادمو د پاره او هم د ځناورو د پاره. غوښې به ئې په میدان پریښودې ځنګلي ځناورو به اوخوړې. په دریم دوره کښې به ئې په سرلې کښې دوکان او نکوډ او خلقو ته به ئې رختونه په خپل لاس د خپلې هسا په ګزونو ورکول. که چا به ورته اصلي روپۍ راوړې نو صغه به ئې واپس کړو چه دا روپۍ کوټه دي. د دې قیمت د فقیرانو او سخیانو سره نشته. البته چا چه به ورته د کودرۍ روپۍ راوړې نو چه څومره رخت به ئې پکار وو صغه هومره به ئې ورکړو په آخر کښې به ئې په خپل دوکان تالان کړو کړو او چغ به ئې کړې چه.

---

له مناقب فقیر جمیل بیګ ص ١٦٩ - ١٧٠

هغه موذیان به دنیا غواړی
دی عاشقانو ستا په لار کښے او با زنه
سرو مال تول عاشقان داؤ کا
دا موزی تش لاسے کوی چه مېن یمه

او د دے نه پس به ئے خلقو ته دعوت ورکړو چه راځئ په دے دو کان تالان دے - چه څۀ مو خوښ وی هغه وړئ - بل به د کال په ځلورم دور کښے هغه سختے مجاهدے شروع کړے چه ځپل نفس به ئے وژلو - د غرونو کړنګونو نه به ئے ځان غورځولو یا به ئے د ځپل روح د هغه لطیف تار سان د رباب او د ربابونو د ساز سره یوځائے کړو چه تر عالم مثاله اورسید - داوو د فقیر بابا د لیونتوب کارونه - که دے ته څوک لیونتوب وائی نو د هغه د عقل په صحت کښے په ځپله شک پکار دے.

د کاکا صاحب د وفات نه پس د هغه په مقام فقیر بابا ولاړ بنکاری. د ځنے نورو هغه رازونو نه چه کاکا صاحب فقیر بابا ته سپارلے وو - د دریو[3] رازونو په حقله فقیر بابا په ځپله ویلی دی -

فقیر بابا وائی چه ،-

" زۀ ځپل مرشد حضرت شیخ رحمکار کاکا صاحب په درے رازونو خبر دار کړم - په دے درے رازونو کښے دوه دومره عظیم رازونه دی چه د هغے په بنکاره کولو کښے زما هلاکت دے ځکه ئے بیان نۀ شم کولے . و لے یو راز که درته بنکاره

---

ؒ مناقب شیخ رحمکار قلمی ص ۷۹ - ۸۰

کوم نو هغه به هم په رموز کښې بیانوم. چه دا راز مکښې د هغه نور دوه رازونو څخه خو اوس دے. وائی چه خپل مرشد کاکا صاحب راته وئیل چه د پاک سبحان په ما دومره فضل دے چه د دے زمکے تصرف ئے قبول ما ته راکړے دے. د شا غرب نه تر ما غرب پورے زما د منګل لاندے ده او چه څه کیږی زما د نظر د وړاندے وی. که په یو ځائے زه چله کښېم ګوته کښیږدم نو د مشرق نه ترمغربه زما نظر رسی او دا مقام قطبیت دے.

فقیر بابا چونکه په چشتیه سلسله کښې ماذون وو نو ددے طریقے د سماع[1] روایت ئے برقرار ساتلے دے. د چشتیه د سلسلے د حضراتو ذوق سماع د روایت نه انکار نهٔ شی کیدے. د فقیر بابا د سماع د ذوق

---

۱ حضرت خواجه عثمان هارونی به په ډیر شوق سماع اوریده. د سماع په حالت کښې به ئے په زوره زوره ژړل او نعرے به ئے وهلے. د هغه وخت ځنے علمائو یو ځل بادشاه ته ددے شکایت هم کړے وو. خواجه عثمان هارونی ته چه ددے پته اولګیده. نو په جوش کښې راغے او اوئے فرمائیل چه سماع د الله په رازونو کښې یو راز دے. د سماع په حالت کښې د بنیادم او خدائے ترمینځه پردے بیخی لرے شی. سماع به هیڅ کله نهٔ ختمیږی.

حضرت خواجه معین الدین چشتی سماع ډیره اوریده. بابا فریدالدین شکر ګنج په حضور کښې یوه ورځ د سماع په باب له د علماؤ د اختلاف خبره راغله نو اوئے وئیل:-

سبحان الله یکے سوخت وخاکستر شد ودیگرے هنوز در اختلاف است.

هم په یو خاص انداز وو - او په دے کښے به هم څه حکمت خامخا وو
ځکه چه د ساز و سرود الات به ئے په یو خاص تعداد کښے ساتل -

د سماع د شغل په وخت به ورته د ولس طنبلونه د ولس (دریالونه)
او د ولس شپیلئ غږولے شوے - چه دے به په حال کښے راغے نو فی البدیع
به ئے داسے ټپے په سوز سره اوو‌ے چه ټول ادبی روایتونه به ئے لرل
استعاره او کنایه به په کښے وه - ولے دا ټپے فقیر بابا یو اځے د حال په وخت
نه دی وئیلی - په هوش و حواس کښے ئے هم د ادبی او تاریخی اهمیت
ټپے وئیلی دی - په دے چه فقیر بابا په دے راز پوهه وو چه په عوامو
د ټپے اثر د شعر د نورو اصنافو په مقابله کښے ډیر او زر کیږی - د کاکا صاحب
علیه رحمت د وفات په وخت کښے چه ئے کومے ټپے په سوز او اوچت آواز
کښے وئیلی دی او ټول خلق ئے په ژړا سر کړی وو - د هغو نه یوه ټپه چه
ډیره مشهوره شوه هغه د ادبی معنے له رویه تر اوسه پورے څومره
اثر لری -

په بوئ دِ ټول عالم خوشبوئ شو
اصیل چندنه په تا پریوتل ګردو نه

(الحمدلله)

په چیرته جنګ د وصال راشی
دلته حاشیه د بیلتانه لیکلی وینه

دکاکا صاحب دوفات[۱] نه پس چه فقیر بابا کوم وخت تیر کړے دے۔ په هغه د وختونو دکردونو دومره غټ تهونه پراته دی چه ډیر په مشکله به ئے سوچه حذ وخال راوړاندے کیږی۔ دا سے ښکاری چه یو خو دخپل مرشد دجدائیئ غم وو چه فقیر بابا بیا مستقل خلوت ته ننوتے دے۔ اګرچه ډیره دا سے خبره معلومه دی چه په دنیاوی کاروبار کښے فقیر بابا ترڅه حده برخه اخستے ده، دخپلے طریقے اشاعت ئے هم کړے دے۔ او هم په دغه ورځو کښے ئے زیات کار د تصنیف و تالیف کړے دے۔ دهغه په تصنیفاتو او تالیفاتو کښے مونږ ته تراوسه یوا ځے درے کتابونه په لاس راغلی دی۔ د دے نه علاوه ئے څه بل څهٔ اثار تراوسه نهٔ دی موندلی شوی۔ که څهٔ وو هم نو چا محفوظ نهٔ دی ساتلی۔ دتاریخ مرصع مولف افضل خان خټک دیو کتاب ذکر کړے دے یعنی د. دل تذکرة الاولیاء چه ذکر ئے وړاندے تیر دے۔

بل بیا د فقیر بابا په خاندان بالخصوص او په ټولو پښتنو بالعموم دا سے حالات راغلی دی چه د فقیر بابا دوزګار ئے دخلقو دنظر نه پناه کړے دے۔ دفقیر بابا په خاندان کښے چه کوم واقعات په دغه ورځو

---

[۱] دکاکا صاحب وفات په کال ۱۰۶۳ھ کښے شوے دے۔ دوفات تاریخ ئے خوشحال بابا په فارسئ کښے په دے قطعه کښے وئیلی دے۔

چو [illegible]فت از جهان شیخ دین رحمکار  رجب بود جمعه به سه وسه هفت

چون احوال تاریخ جستم زعقل  چنین گفت با ما که بافقر رفت
۱۰۶۳

خوشحال خان خټک از دوست محمد کامل ۶۴

کښې راپيښ شول - هغې به خاخا فقير بابا ته غټه صدمه رسولې وي - د خوشحال بابا قيديدل د هغهٔ د اولاد دره په ديکې کيدل هم داسې واقعه ده چه فقير بابا به ترې خاخا اثر اخستې وي - او ولې به ئې نهٔ اخستو ځکه چه خوشحال بابا په فقير بابا دومره مئين وو چه د قيد په حالت کښې چه کوم فراق نامه ليکلی او په کوم درد د چيل ورور د مسکن ذکر کوی نو دا مينه يو ه ارخيزه نهٔ ښکاری -

بيا د خوشحال بابا د قيد نه واپس راتلل د مغلو او پښتنو ترمينځه د مستقلو جنګونو سلسله شروع کيدل داسې دی چه څوک ئې د دې خبرې ته نهٔ دی پريښې چه د فقير بابا حال واخلی - د دې نه علاوه د خوشحال بابا په خپله کورنئ کښې داسې اختلافات او حالات راپيښ شول چه د عظيم خوشحال زړهٔ ئې مات کړو - د اشرف خان هجری قيدول - د شيخ ضياء الدين اناؒ د ګل شهيديدل

ئے په دې خبره کښې اختلاف دے - تاريخ مرصع وائی چه ازادګل بابا ماړخو رلې وو او ترې وفات شوې وو - او ځنې کاکاخيل وائی چه اشرف خان هجری زهرورکړی وو - ځکه چه ازادګل بابا د بهرام ملګرې وو - (رساله کاکا صاحب از عقاب خټک ص ۲۴ - ۲۵)

د اشرف خان هجری دوه شعرونه د دې واقعې په حقله خلقو مشهور کړی دی -

زهٔ په بند د اورنګ نهٔ يم چه به خلاص شم    بندی کړې د خمکار زنيری کاکا يم
په دکن کښې پاروښتهٔ چه ے دم کا    زهٔ خوړلې اژدها تورې بلا يم

ولې د پښتو اکيډمي په کتب خانه کښې چه د اشرف خان هجری د ديوان کوم مائيکروفلم دے په هغې کښې دا شعرونه نشته -

د دې په حقله د ښاغلی عقاب خټک او د مرحوم محمد نواز خټک دا خيال دے چه داچا د ځان نه جوړ کړی دی - او په هجری پورې ئې تړلی دی -

دبهرام بغاوت د فقیر بابا چپیر خانے دځنے خلقو سره دخوشحال بابا دکورنئ اختلافات داسے صدمات دی چه فقیر بابا ئے په مستقلے گوشه نشینئ مجبور کړے دے - خوسره ددے نهٔ خو دخوشحال بابا په زړهٔ کښے دخپل ورور فقیر جمیل بیگ په مینه کښے څهٔ فرق راغلے دے او نهٔ دهغهٔ د اولاد لونړو او زامنو د زړهٔ نه د فقیر بابا مینه کمه شوے ده - بلکه په دوئ کښے چه به څوک هم ددے اړی کړی په حالت را تنگ شو نو د فقیر بابا تر څنګه به ئے پناه موندله - نور خو پریږده چه هغه مکار او دغاباز بهرام[1] هم دژوند په اخری لمحو کښے د فقیر بابا د درگاه خوا نیسی -

فقیر بابا په خپله په دے تفرقه کښے بیخی غیر جانبدار پاتے شوے دے. په خپل خاندان او د اقتدار په دے کشمکش کښے ئے هیڅ غرض نهٔ دے لرلے. که چا څهٔ داسے قسم سیاست هم کړے دے چه د فقیر بابا حمایت حاصل کړی خو ناکام شوے دے - او آخر هم ددا سے قسمه ددنیا دشور و غوغا نه په امان په اطمینان ئے دخپل محبوب غرهٔ او په زړهٔ پورے دپلوسو په بنړ کښے خو اوُشا د دوه نوی کالو په عمر کښے په کال ۱۱۱۶ھ

---

[1] دبهرام قبر په چشمئ کښے

(تاریخ مرصع ص ۴۰۷)

افضل خان ئے دمرینے تاریخ داسے ویلے دے -

پون عاق والدین مظالم زجهان برد　　امروز زیر خاک به ناکام جهان سپرد

تاریخ فوت اوشدهٔ در فکر خود چو جستم　　بهرام شادی حرام په بد حال وے بمرد

۱۱۲۹ھ

کښې د دې دنیا نه رحلت کړے دے[۱] - دخپل قبر د پاره چې ئې کوم ځائے خوښ کړے دے هغه نن هم د هغه د سوچه فقیرئ تصویر وړاندے کوی دخپل اولاد دیو څو کورونو سره د تنګا رو[۲] کلی نه لاندے د خوړ په غاړه ئې مزار مبارک دے - چه نه ئې خوړے چاڅه ګنبد جوړ کړے دے او نه ئې ورسره د زائرینو د سهولت نور څه سامان شته[۳].

## اولاد

د فقیر بابا دیارلس زامن وو[۴] - فقیر بابا چه دنیا ترکه کړه او د چشمئ په دره کښے ئې سکونت اختیار کړو نو خپل اولاد ئې هم دځان سره بوتلو - زامن ئې هم دغه ځائے د فقیرئ په حالت کښے لوئے شوی دی - دوئ ګذر اوقات به د نهال پورے د کلی د سالانے نه کیدۀ - دوئ هم دخوشحال بابا تر ژوندانه پورے په خاندانی سیاست کښے دومره ډیره برخه نه ده اخستے - اګرچه د افضل خان خټک او د بهرام د سیاسی کشمکش په ورځو کښے په دوئ کښے ځنو برخه څنبه کړے ده - ځنے د

---

[۱] چوں رفت ازجهان این کرامت خدیعه ، بجز ق امد زعالم غریعه

(۱۲۱۶ - ۱۰۰ = ۱۱۱۶ هـ)

[۲] تنګا رو د تحصیل نوښار د جهانګیری نه شویل قراخ ته نیمه میله کښے د پیتاو اود رګئ کلی سره د فقیرخیلو میاں ګانو کلے دے -

[۳] اوس اوس پکښے میاں سرفراز لنګر شروع کړے دے - میاں سرفراز فقیرخیل میاں دے.

[۴] تاریخ مرصع ص ۲۶۰ [۵] تاریخ مرصع ص ۳۹۸ - یو څو د فقیر جمیل بیګ زامن چه هغو ګمراهو ګمراه کړی وو - افضل خان چه په اشاره کښے چاته ګمراهان وائی - هغه کا دے او باد ے کیدے شی - چاچه روستو په خپله هم د فقیر بابا مخالفت کړے دے - او د فقیر بابا زامن ئې هم دخپل پلار سره مخالف کړی وو - د مناقب فقیر د شپږم ویشتم منقبت نه واضحه ده -

(مؤلف)

خانئ او نوابیئ د ژوند په لوړ راستنه شوی هم دی . په دوئ کښے د یو کس دوه د خپل پلار فقیر جمیل بیګ سره څه شرعی اختلافات هم راغلی دی - ولے دا اختلافات زیات سنګین نهٔ وو - د دنیا د خلقو په خاطر ئے د فقیر بابا سره په څنے عالمانو مناظرے کړی دی - چه یو پکښے د لنډئ اخوند احمد صاحب هم دے -

د فقیر بابا د اولاد سره اګر چه اقتدار نهٔ دے پاتے شوے - ولے د خپل نیکهٔ په جائیداد کښے ئے خپله برخه اخستے ده - د نهال پورے د نیکانے د جائیداد نه علاوه د چشمئ خواؤشا کلی ئې هم د هغوئ سره دی . د فقیر بابا اولاد چه وروستو په اکوړ خیلو کښے په فقیر خیلو مشهور شول - په چشمئ تنګاړو شیدو آدم زو زدنګر زو، اکوړی او څنے خواؤشا نورو کلو کښے آباد دی - ئې ئے هم خلق ډیر احترام او قدر کوی او فقیر خیل میاں ګان ورته وائی - چونکه دَ دوئ نیکهٔ فقیر بابا یو رښتونے فقیر وو لهذا تر ننه پورے ئے د خپل نیکهٔ فقیر بابا نوم د څهٔ سیاسی مقصد د پاره نهٔ دے استعمال کړے - او نهٔ ئے د خوشحال خان د اولاد سره د سردارئ په مراعاتو کښے د څهٔ قسمه برخے دعوے کړلی ده - بلکه دے نه اپوته ئے خپل تعلق د خپل نیکهٔ د فقیر بابا د پیر خانے کاکا خیلو سره مضبوط کړے دے -

په ظاهره خو داسے ښکاری چه د فقیر بابا اولاد د فقیر جمیل بیګ د طریقے د اشاعت د پاره څهٔ خاص زیار نهٔ دے کړے - ځکه چه نهٔ خو ئے د خپل نیکهٔ د روضے هغه رنګه خیال ساتلے دے لکه څرنګه چه نورو خټکو میاں ګانو د خپلو نیکونو په روضو شاندار ګنبد ونه جوړ کړی دی

خوسره دده په ځنې نمسو کښې د خپل نیکهٔ قدردان هم وو. ولي محمد خټک چه د فقیر بابا نمسے دے او لوئے عالم او خان تیر شوے دے. په خپل لاس د فقیر بابا د کتابونو کتابت کړے دے. چه یو پکښې نورمحمدیه دے. دا نورمحمدیه چه په کوم اهتمام او ښائسته طریقه لیکلے شوے دے. که یو اړخ ته د ولي محمد خټک علمیت ښکاره کوی نو بل اړخ ته د هغهٔ د خپل نیکهٔ سره اخلاص او مینه ښائی.

---

تمت تمام شد کتاب نورمحمدیه از تصنیفات قطب الاقطاب مولانا فقیر جمیل بیگ قدس الله سره العزیز په انجام انجامید بدستخط فقیر پر تقصیر ولي محمد پسر غلام محمد مرحوم غفرالله یکی از نواسه خوشحال بیگ وجمیل بیگ رحمهم الله اجمعین آمین.

(نورمحمدیه قلمی پښتو اکیډمی)

# مناقب فقیر

## د میاں شمس الدین

د فقیر بابا د کراماتو او کمالاتو یو غټ امین میاں شمس الدین کاکاخیل دے.
ټوک چه د خپل وخت یو لوئے عالم او د فقیر بابا معتقد وو. شمس الدین
د فقیر بابا د یو نسي میاں حیدر په فرمائش د فقیر بابا مناقب په پښتو شعر
مثنوئ کښے لیکلی دی. د دے مناقبو د شعر نه مونږ دا اندازه لګولے شو چه
شمس الدین اګر چه پوخ عالم او فاضل سړے وو ولے د اعلیٰ پائے شاعر
نه وو. شاعري ئے عامیانه ده چه څه خاص ادبي رنګ نه لري. یو ادبي نقاد
به خامخا د شمس الدین په شاعرئ هم دا سے تنقید کوی. د شعر د تنقید نه
علاوه څنے واقعات هم دا سے دی. چه میاں شمس الدین ئے پوره معلومات
نه دی لرلی چه د چا نه ئے څرنګه اوریدلی دی. سره د خپلو اضافو ئے بیان
کړی دی چه د ننن صبا د تحقیق په رڼا کښے او د هغه وخت د څنے نورو مستندو
کتابونو په موجودګئ کښے غلط ښکاری. خو دا سے واقعات په مناقب فقیر
کښے ډیر کم دی. د مناقبو زیاته برخه په دے لحاظ صحیح او مستنده ده. چه
د دے واقعاتو ګواهی د هغه عصر نور مصنفین هم کوی.

بل په دے مناقبو کښے زیات تر واقعات دا سے دی چه د فقیر بابا د
نسو او کروسو ور ښودلی دی. چا چه یا خو دا واقعات په خپلو سترګو لیدلی

وو ـ یا یٔ د مستند و خلقو د هغه وخت نه اوریدلی وو نو ځکه په د ے مناقبو کښے د څهٔ قسمه شک کولو ګنجائش نهٔ ښکاری ـ

میاں شمس الدین د د ے نه وړاندے[1] د کاکا صاحب مناقب هم په د غه رنګ مثنوئ کښے لیکلی دی ـ د فقیر بابا د مناقبو راوی شمس الدین په خپله هم د فقیر بابا د عهد سره ډیر نزدے دے ـ

شمس الدین کاکاخیل د کاکا صاحب د مشر زوئے ضیاء الدین شهید بابا کړوسے دے ـ ځوک چه د فقیر بابا هم عصر وو ـ په دے لحاظ هغه په خپله هم د دے عصر یو سند ګڼلے شی ـ شمس الدین د شیخ زبیر زوئے د قیاس الدین نمسے او ضیاء الدین کړوسے دے ـ چونکه ضیاء الدین شهید بابا د خوشحال بابا د کورنئ په سیاسی معاملاتو کښے ملوث وو او د بهرام ملګرے وو ـ نو په دے سبب موږ د شمس الدین د دے قسم جذباتی تړون نه هم سترګے نشو پټولے ـ د کوم له مخه چه به هغه په ځنے واقعاتو کښے د جانبداری نه کار اخستے وی ـ

نو سره د دے ټولو خبرو بیا هم د شمس الدین دا مناقب چه د فقیر بابا کوم واقعات کرامات بیانوی ـ هغه د تاریخ مرصع مناقب شیخ رحمکار د ډیرو واقعاتو سره موافق دی ـ

بل د سند ثبوت ئے دا دے چه شمس الدین کله مناقب شیخ رحمکار کښے بیکړهٔ نو د مطالعے لاندے ئے د تاریخ مرصع نه علاوه د فقیر جمیل بیګ[2] مناقب هم ...

---

[1] میاں شمس الدین د مناقب شیخ رحمکار مناقب فقیر جمیل بیګ نه علاوه د امام اعظم مناقب او مناقب حضرت جی یعنی میاں ... ئے هم لیکلی دی

[2] فقیر بابا د کاکا صاحب مناقب لیکلی دی ـ و لے دا مناقب اوس نایاب دی ـ

د ل تذکرة الاولیاء او د کاکا صاحب یو مل مرید اخوند جمیل راټول کړي واقعات او د حلیم ګل بابا مقامات او مقالات قدسیه وو. بناءً علی مصنف چه څه لیکلي دي د دې کتابونو په حواله ئې لیکلي دي نو په دې سبب د مناقب په سند درجه نه ماخلوي. ځکه چه د شمس الدین نه روستو چا هم چه په کاکا صاحب یا دغه وخت په نورو اولیاو څه لیکلي دي نو حواله ئې زیاته هم د شمس الدین لیک ته کړې ده. د شمس الدین نه روستو څه نور کتابونه چه د څه خاص مصلحت په غرض لیکلي شوي ښکاري. مغفور فقیر بابا په حقله په عوامو کښې یوه معمولي شانې غلط فهمي پیدا کړې ده. ځکه چه دې لیکونکو د فقیر بابا په حقله پوره تحقیق نه دې کړې. ورته د کاکا صاحب د ځنې نورو خاصو مریدانو د نومونو د تصحیح خبره ... دے. په دې سبب د فقیر بابا حالات د راتلونکو لیکونکو په کتابونو کښې صحیح او نه لیکلي شول. دے بناء غلیو د فقیر بابا خپل اصلي نوم معلوم نو دو مره معمولي شان خیال هم نه دے ساتلے. دا وجه کیدے شي. چه تر اوسه پورې د فقیر بابا په ډونډ ډیر مستند حالات مخې ته راغله.

**واقعات** واقځ چه کله فقیر بابا د دنیا کاروبار پریښو او د کاکا صاحب خاص مرید شو. نو هر وخت به د کاکا صاحب په خدمت کښې حاضر وو. یو ساعت به ترې نه جدا کیدو. د کاکا صاحب ورسره هم ډیره مینه وه. یوه ورځ دا مرشد و مرید دواړه په خلوت کښې ناست وو. بل څوک ورسره نه وو. په دغه وخت کښې کاکا صاحب په خپله مصلے ناست وو

---

له اخوند جمیل د کاکا صاحب یو بل مرید وو

او فقیر بابا ورسره وو -

ناګهانه د کاکا صاحب رنګ متغیر شو - اول تک زیړ شو - بیا یئے رنګ سور شو - او بیا زیړ زرغون شو - څه ساعت پس کاکا صاحب بیا په خپل حال راغی. فقیر بابا دا هر څه په خپلو سترګو لیدل - چه کاکا صاحب له دے حاله راوبیښ شو - نو فقیر بابا ترے پوښتنه اوکړه چه دا وے - کاکا صاحب ورته متبسم شو او ورته یئے اووئیل چه دا یو حال دے - د دے بیان په ژبه ډیر ګران دے. نه بیانیږی یعنی دا یو حال دے چه د قال سره یئے تعلق نشته - هر هغه څوک چه دے مقام ته په خپله راشی خود به پوهه شی - شاید چه د فقیر بابا اصرار وو نو کاکا صاحب ورته اووے چه په تا به هم دا حال راشی - بیا به خبر شی[۱] - د کاکا صاحب دا وئیل وو چه هم هغه حال په فقیر بابا هم راغی. د عشق او مینے یو داسے حال پرے راغی چه دے د خپله ځانه ورک شو - په کاکا صاحب ئے ورتهوپ کړه - او ورته وائی چه دا څه دی - دا ته څوک یئے او دا زه څوک یم دا ته دے پیر یئے او زه دے مرید یم - که نا زه دے پیر یم او ته دے مرید یئے - ته زه یم او که زه ته یئے - کاکا صاحب نری نری خندل او په خندا خندا کښے ئے ورته اووے چه ګوره کنه - ټینګ نه شوے د دے حال تاب دے را نه وړو - که ته تهول لکه د ګنی خوږ شوے نو لیونے شوے - د وه کماله دے حاصل شول - یوه دے فقیری مبارکه شه

---

[۱] په مناقب فقیر کښے وائی چه دغه حال په فقیر بابا هم په هغه ساعت راغلے وو ولے تاریخ مرصع وائی چه د کاکا صاحب د وفات نه پس پرے راغلے وو. د تاریخ مرصع بیان درست ښکاری چه بیان ئے وړاندے تیر دی -

اوبل دے پہ مینہ کښے لیونتوب دا دواړه درجے ستا دی ۔

ددے نه پس چه فقیر بابا بیا په خپل حال شو نو په یو دا سے اضطراب ګښے راګیر شو چه شړئ یې لنګ کړه او په صحرا اووتو ۔ د عشق دغه تاؤ بیئے د سازو سرود په اوریدو تېکوړولو ۔ دولس طنبله دولس شپیلئ او ددریالونه په ورته یارانو غږول او ده به اوریدل ۔ ددے نه پس به ئے اکثر ددے سماع مجلس جوړ وو ۔[۱]

۲۔ فقیر بابا به اکثر مړ ونه او غوا ګانے حلالولے ۔ خیراتونه به یې کول ۔ د کلی اولس خلق به یې را جمع کړل ۔ خیراتونه به ئے پرے خوړل ۔ د چا به چه څه نوړ حاجت وو هغه به ئے ورته پوره ته کول ۔ دومره زیات سخاوت یې وو چه خلق ورته حیران وو ۔ چه اخر دا دومره دولت له کومه راځی ۔ چه فقیر بابا پرے دا دومره درانۀ خیراتونه کوی ۔ هم دا سے یوه ورځ فقیر بابا مړ ونه غوایان حلال کړی وو ۔ خلق یې رابللی وو ۔ لوئے خیرات وو ۔ چه په دے کښے د هندوستان دوه کیمیاګر مسافر هم راغلۀ ۔ هغوئ هم دا خیرات اوخوړو ۔ چه کله خلق ماړۀ شول ۔ واپس لاړۀ نو دا دواړه کیمیاګر فقیر بابا ته راغلۀ چه موږ ستا ددے سخاوت نه ډیر زیات متأثر شو ۔ موږ سره د کیمیا یوه نسخه ده چه در ته ئے اوښایم ۔ فقیرانو ته ئے اووے چه یو دیګ راوړئ ۔ یو من یا دوه منه شوده په کښے واچوئ — مریدانو چه دا دیګ اوشوده راوړو نو کیمیاګر اور ورلاندے کړو ۔ د یو ساعت یشیدو نه پس ئے د جیب نه څۀ پوډر را اوویست او په هغه دیګ

---

[۱] دا واقعه د فقیر بابا د کاکا صاحب نه په چشتیه طریقه کښے د مجاز کیدو په لوری هم اشاره کوی ۔

کښې ئې واچول - څه لحظه پس چه ئې کتل نو په دیگ کښې د سپینو زرو یوه
غټه چکټۍ پرته ده او دیگ هم د زرو شوے وو - دے کیمیاګرو فقیر بابا
ته اووے چه چونکه ته اکثر خیراتونه کوے - دا نسخه به مونږ درکړو او ستا
کار به پرے روان وی -

فقیر بابا ورته په خندا شو - او وے وئیل چه دا خبره خو ښه ده - و لے کړاو
غواړی او زما طریقه دده نه اسانه ده - ورسره څنګ کښې یوه کټه پرته وه -
په هغې ئے خپلے لاړے تو کړے - دے کیمیاګو چه ورته او کتل هغه کټه د سرو زرو شوه -
معافی ئے اوغوښته او دواړه ئے مریدان شول -

۳ - واقعه چه د اټک یحیی صاحب[۱] به په هره دریمه ورځ د فقیر بابا په مجلس کښې

---

۱ زمونږ په اولیاء کښې دا درے نومونه چه مشهور دی - شیخ جی (کاکا صاحب)
میاں جی (فقیر بابا) حضرت جی (د اټک یحیی صاحب)
د نومونو په لحاظ د تعلق نه علاوه شمس الدین د اټک حضرت جی صاحب ته د میاں جیو
یعنی فقیر بابا مرید وائی - او ډاکټر حنیف پروفیسر اسلامیه کالج په خپل مضمون
خوشحال خان خټک کا خاندان اور تصوف مطبوعه ماهنامه الحق اکوړه خټک اکتوبر و نومبر
۱۹۸۱ء کښې د ظواهر السرائر په حواله ددے خبرے نه انکار کوی - او وائی چه حضرت
جی شیخ یحیی د حضرت شیخ سعدی لاهوری مرید وو - او د بل چا په لاس ئې بیعت
نه وو کړے -
نو هر کله چه حضرت شیخ سعدی لاهوری په کال ۱۹۸۰ء کښې په حق رسیدلے دے
او حضرت جی شیخ یحیی په کال ۱۱۲۹ھ کښې وفات موندلے دے یعنی د خپل پیر د
وفات نه پس هم یو ویشت کاله ژوندے وو - فقیر بابا په کال ۱۱۱۶ھ کښې

(باقی په بله صفحه)

حاضریدهٔ - یوه ورځ فقیر بابا سره د نورو مریدانو د نیال پورے نه بهر په خوړ کښې یو بند جوړ وُو - د اتمک صاحب هم موجود وو - کوم مریدانو چه ئې د خوړ په بند کښې کار کولو - فقیر بابا په هغو انګورو ویشلو او داسے به ئې ویشلو چه چاته به ئې یوه غنچه چاته دوه غنچې ورکولے - وار په وار به ئې یو یو کس رابللو او د انګورو غنچې به ئې ورکړې - هم داسے چه کله د یحیٰی صاحب وار راغے - نو فقیر بابا ورته اووے چه یحیٰی راشه دا درے غنچې ستا دی واے ئې خله چه یحیٰی صاحب ورته راغے نو هندکو کښې ورته فقیر بابا اووے چه دور یعنی لرے شه - نه ئې درکوم - یحیٰی صاحب واپس شو - په دویم وار ورته بیا فقیر بابا اووے چه راشه دا درے غنچې دے واخله چه یحیٰی صاحب دوباره راغے فقیر بابا بیا اوشړلو - چه ځه نه ئې درکوم - هم دغه رنګ چه په دریم وار بیا راغلو - نو فقیر بابا ورته هغه د انګورو غنچې

---

وفات شوے دے یعنی د حضرت شیخ سعدی لاهوری د وفات نه پس هم اته کاله ژوندے وو - نو د حضرت جی شیخ یحیٰی د فقیر بابا سره د تعلق نه انکار نشی کیدے ځکه چه په طریقت کښې د تجدید بیعت اجازت شته - کله چه د شیخ انتقال اوشی او د مرید سلوک نیمګړے پاتے وی - بل مرید ته د شیخ مزار نه د سلوک د تکمیل موقع په لاس نه ورځی نو په داسے حالاتو کښې تجدید بیعت نه یواځے جائز بلکه په طریقت کښې فرض دے -

په مذکوره واقعه کښې هم دے خبرے ته اشاره ده چه د اتمک حضرت جی ځنې لطائف بند شوی وو او هغه ورته فقیر بابا ازاد کړل -

نو کله په داسے حالاتو کښې حضرت جی د فقیر بابا نه تجدید بیعت کړے دے نو دا خبره د قیاس نه لرے نه ده - (مصنف)

ورکړے او ورته ئے اووے چه څه مبارک دے شه - یحیٰی صاحب دا ګنګوړ غنچے وا خستے او په خوشحالئ اتک ته روان شو - ډیر زیات خوشحال وو - چا ترے پوښتنه اوکړه چه دا دومره په څه خوشحال یے - نو د اتک صاحب ورته اووے چه زما دے لطیفے یا وظیفے بند شوے وے - هغه راته نن فقیر بابا ازاد ے کړے د یحیٰی صاحب د تلو نه پس فقیر بابا مریدانو ته اووے چه سړی دا دنګ بوټے لکه د اتک حضرت جی چه د یقین په کوړ بسیا دے -

ع، دور دور د فقیر دے ۔ د غافل په صورت ویر دے
د غافل په صورت ویر دے ۔ دور دور د فقیر دے

د فقیر بابا دا طریقه وه چه د کال په یوه برخه کښے به سره د خپلو مریدانو او سازیانو په غرونو او ګرنګونو ګرځیده چه حال به پرے راغے - مست به شو نو ځان به ئے د کمرو او ګرنګونو نه غورځوۀ - نعمت خان د سرلے اکوړه چه د شمس الدین کاکاخیل په زمانه کښے سپین بږیری بوډا شوے وو او نهایت پاکباز دیندار سړے وو - د هغے د خلے روایت دے - وائی چه ما فقیر بابا په خپله په خپلو سترګو لیدلے وو - وائی زما پلار د فقیر بابا مرید وو - زۀ په هغه وخت د لسو کالو هلک وم - یوه ورځ ے خپل پلار زۀ د ځان سره کړم چه فقیر بابا ته مے روښانئ او دُعا راته اوکړی - دوئ چه کله د چشمئ خوړ ته اورسیدۀ او اوئے لیدۀ چه فقیر بابا سره د خپلو مریدانو او سرودیانو روان دے - زۀ ورته خپل پلار روښانه لم چه زما دے زوے ته دُعا اوکړه - فقیر بابا په حال کښے وو - دُعائے راته اوکړه چه عمر دے ډیر شه او د اتیاؤ کالو تیر شه [1] - د دے نه پس فقیر بابا په ورانګه

[1] شمس الدین هم د دے نعمت خان د خلے دا واقعه بیان کړے ده - او نعمت خان چه په دغه وخت کښے د اتیاؤ کالو وو - دا ئے عقیده وه چه کومه زۀ دے عمر ته د فقیر بابا د دعا برکت خدائے تعالیٰ رارسولے یم -

روان شو - ډیر خلق ورسره وو - فقیر بابا په خپله په خره سور وو او
نور مریدان د ساز په غږیدو او دومره مست وو چه ځانونو بسے ویشته
راویشته - نعمت خان وائی چه چونکه زه په دغه وخت کښے هلک وم،
نه پوهیدم - خو دومره مے اوریدهٔ چه د ساز د اواز یوالحے د سر ودیلو
د طنبلونو نه د راختے بلکه د خواوشا کانړو بوټو نه هم د ساز اواز پورته
کیدو - او د دے ساز په عالم کښے به فقیر بابا په مست اواز دا شعر وے -

٥ دور دور د فقیر دے[1]     د غافل په صورت ویر دے
د غافل په صورت ویر     دور دور د فقیر دے

دا کلام به د فقیر بابا سره ځنے نورو کسانو هم په جمع وے - او دا کسان
ورپسے په ارام روان وو - یو داسے حال وو لکه چه دا خواوشا په هر څیز
کښے ساه غږیږی او په دے حال مست وی -

---

[1] دا وینا د فقیر بابا خپله ده - داسے ښکاری چه د دے رنګ شعر په صورت کښے
هم دا وینا کوله - شاید چه فقیر بابا د ټپو نه علاوه نوره شاعری هم کړے ده خو
افسوس چه څه نورے نخښے ئے په لاس نه راځی - د پښتو اکیډیمۍ په لائبریرۍ کښے یو
زوړه قلمی نسخه چه د مختلفو شاعرانو د شعر انتخاب په کښے دے د عبدالقادر خان خټک -
علی خان - رحمان بابا او ځنے نورو شاعرانو د کلام نمونے لری - په دے قلمی نسخه کښے د
جمال خان نومے شاعر دوه غزلونه هم ورکړی دی چه د ښاغلی افضل رضا دا خیال دے چه د
فقیر بابا شعرونه دی خو دا خبره ثبوت ته رسیدلے ده چه د فقیر بابا خپل نوم جمیل خان وو،
جمال خان نه وو - او بله دا چه دا جمال خان شاعر څوک چه د سیکانو د دور شاعر ښکاری -
چه د کلام نمونے ئے جوته ده -

د ، نون، محمد غوث کاتب له خُلے روایت شمس الدین کاکاخیل بیانوی د

شا علی خون صاحب نه ما په خپله د فقیر بابا د کرامت دا واقعه اوریدلے ده ـ

وائی چه د بهادر شاه بادشاه[له] په وخت کښے دا تک یو مغل صوبیدار ددے

علاقے په خلقو ډیر ظلم کوؤ ـ په دومره ظلم یے په دے خلقو له وطن نه کډے

اوکړے ـ ددے صوبیدار دا طریقه وه چه په څه بانه به ئے هیڅ بے هیڅه په یو

کلی یا علاقه حمله اوکړه او لوټ به ئے کړو ـ د هزارے او چهچه علاقے

هم لوټلے وے او ډیر نږښتے او هلکان ئے دا تک په قلا کښے بندیوان کړے وو

کله چه د خوارؤشا علاقو خلق ددے ظالم صوبیدار له لاسه تر پوزے راغلل

او د خلاصی ئے هیڅ درک بیا نهٔ مونده نو په ژړا او فریاد د فقیر بابا دربار ته حاضر

شول ـ په ژړا ژړا ئے فقیر بابا ته اووے چه زمونږ ټول مال وعیال دا تک

صوبیدار بندی کړے دے ـ زمونږ یے له خدایه بله هیڅ اسره نشته که ته مو

د خدائے په خاطر مددگار شے چه زمونږ دا مال وعیال د مغلو د بند نه راخلاص

---

له هر کله چه د فقیر بابا د وفات نیټه د فارسئ ددے شعر له مخه ـ

ه چون رفت از جهان این کرامت خدیو بجز ق امد ز عالم عریو

ع ـ ۱۰۰۰ ـ ا ـ ۲۰۰ ـ ي ـ ۱۰ ـ و ـ ۶ ـ ۱۲۱۶ ـ ق ـ ۱۰۰ ـ ۱۱۱۶

۱۱۱۶ هجری را وځی او بهادر شاه د اورنګ زیب زوے معظم دے نو هغه په کال

۱۱۱۹ ه کښے د اورنګ زیب د وفات نه پس بادشاه شوے وو ـ څرګنده خبره ده

چه د معظم د بادشاه کیدو نه درے کاله وړاندے فقیر بابا وفات موندلے وو ـ

په دے لحاظ دا روایت صحیح نهٔ دے ـ بهادر شاه څوک بل څوک مغل صوبیدار د

اورنګزیب په وخت کښے وی چه معظم شاه عالم بهادر شاه بادشاه یعنی نه شی کیدے

کړے ۔ فقیر بابا چه د او لس دا حال اولیدهٔ بے شانه ډیر زهیر شو اوخلقو ته ئے دا دلاسه ورکړه چه کهٔ خدائے کول ستاسو مال او بندیان به ازاد شی۔ ن شپه تاسو دلته اوکړئ ۔ صبا به ګورو ۔ چه صبا شو فقیر بابا په خپل مخصوص انداز کښے خپل مریدان ځان سره کړل ۔ د سماع الاتئے داو اخستل او په نهایت جلال کښے د اټک په لور روان شو ۔ فی البدیه به ئے د شپیلئ او د تمبلونو د ساز سره دا ابیات وئیل ۔

ځوک به دروهی خدائے د پاره | فقیر دروهی خدائے د پاره
پاک رسول ورسره مل دے | بد د که له چهل پساره [1]

په لاره لاره به ئے دا وینا وئیله چه په دے کښے د اټک هغه ظالم صوبیدار ته خبر کړو چه فقیر بابا دا روان دے او ستا بندی کړی بندیان ازادوی۔ فقیر بابا چه د اټک ګودر ته نزدے شو نو هغه صوبیدار په زړهٔ کښے دا فکر اوکړو چه بله چاره نهٔ وه نو حکم ئے وکړو چه د اټک د ګودر مانړګیانو ته ئے حکم اوکړو په کشتئ توبے دے پلے غاړے ته اوړوئ ۔ د کشتو غونډه بیړه په پورے غاړه اووړولے شوه او د فقیر بابا د پورے وتو د پاره بل هیڅ بند و بست نهٔ وو ۔ ځکه چه بیړئ ټولے په زنځیرونو په پورے غاړه تړلے شوے وے۔ فقیر بابا چه ګودر ته را ورسیدو ۔ وے ئے لیدل چه ګودر بند دے نو تپوس ئے اوکړو چه دا ګودر ولے بند دے ۔ دا ټول خلق ولے او چا دا ایسار کړی دی ۔

( دد غه شان تجابلی عارفانه نوا هم د فقیر بابا شالونهٔ ډیر دی چه

---

[1] دوے نه د شعر و شاعرئ سره د فقیر بابا د ذوق او تعلق اندازه کیږی۔

دائې مخصوص انداز وو) چا ورته اووے چه دا ګودر هم ددے غرض د پاره بند کړے شوے دے چه تاسو پورے لاړ نۀ شئ۔ ځکه چه صوبیدار ستا نۀ پیږدی۔ فقیر بابا ورته اووے چه کلهٔ خدائے تعالیٰ نۀ بندوی نو دا حاکم څوک دے چه ګودر یا بیړے به بند کړی۔ بیائے فقیرانو ته اووے چه په مخامخ کشتیو کښے ستاسو کومه یوه خوښه ده۔ فقیرانو اووے چه د بیړے په دے مینځ کښے چه کومه مضبوطه او ښکلی بیړه ده۔ دغه زمونږ په کار ده۔ دهاړ پښے ورځے وے سیند په چپو وو۔ فقیر بابا په زوره هغه بیړے ته ناره اوکړه چه اے بیړے زر را درومه ځکه چه تۀ د خدائے د حکم لاندے ئے۔ د ظالم په حکم نۀ ئے۔ راشه او زما دا فقیران درپورے باسه۔ د فقیر بابا ددے وینا سره بیړئ په خپله د مینځه اووته او دے پلے غاړے ته راروانه شوه۔ نۀ په کښے مانړګے وو او نۀ څه چپو ګان په کښے وو۔ لکه د اس په شان دے غاړے ته راروانه شوه۔ هغه ظالم صوبیدار چه د اټک د قلعے په یو برج ناست وو دا ننداره ئے کوله کله چه کشتئ ئے اولیده نو دم پرے خوړ شو۔ پریشان پریشان ئے کشتئ ته هم کتل او تپوس ئے هم اوکړو چه دا کشتئ چا خلاصه کړه۔ نوکرانو ورته اووے چه کشتئ په خپله بے د مانړګی نه لاړه۔ صوبیدار فکر یوړ چه دا څه اوشول بلاخر ته فقیر بابا سره د مریدانو په هغه کشتئ کښے اوښتو او دا تپے ئے د سازونو سره وئیلے۔

بیړیه څه د خدائے په حکم — څۀ به ظالم څۀ به دده بندی کوئه
فقیر شومل د مظلومانو — خدائے وی مل چه بندیوان ازادوینه
فقیر بابا چه سره د مریدانو د دریاب په بله غاړه کوز شونو هغه

صوبیدار په ویره ویره د فقیر بابا استقبال ته راغے او معافی ئے ترے اوغوښته بیائے د فقیر بابا په مخ هغه ټول بندیان او د هغوئ مال وعیال رهائی دکړل۔ صوبیدار ورته اووے چه بندیان ټول ازاد شول۔ نو فقیر بابا ورته اووے چه ګوره که څوک پاتے وی نو صوبیدار اووے چه نور څوک نه دی پاتے۔ فقیر بابا ورته بیا اووے چه څه ورشه د کوټ په فلانئ کوټه کښے یوه بندی ښځه ده۔ میچن اوړوی او فریاد کوی هغه هم را خلاصه کړه۔ هغه په اصل اخون خیله ده۔ څوک خپل خپلوان نه لری۔ نو ځکمے چا ته پته معلومه نه شوه۔ صوبیدار چه دا واؤریدل سمدستی ئے نوکرانو ته حکم اوکړو۔ هغه زنانه ئے راوسته۔ نو فقیر بابا ورته په خندا کښے اووے چه واخله دا ښځه روپئ ز مالہ اړخه۔ دا د تا پروے شو۔ چونکه ستا څوک رشته دار نه وو چه د تا د ازادو لو خیال ئے ساتلے وے نو ځکه زه دستا غواړے وئے شوم یعنی ستا له اړخه ستا د پاره زه مدعی شوم۔ او دغه رنګ د ترسناک رحمکار کاکا صاحب سُوچه رحم دل او زړه سوونکی مرید د خپل پیر د رحمکارئ روایت ئے اوساته۔

۶ - یوه ورځ اخوند صاحب سرهٔ د خپلو مریدانو او شاګردانو د فقیر بابا زیارت ته دا روان وو۔ د دریاب په پله غاړه چه دوئ ټول په بیړئ کښے کښیناست دا روان شو۔ د اخون صاحب په مریدانو کښے یو د ننګرهار د علاقے یو طالب

---

* شمس الدین دا واقعه د جهانګیری د هغه ملا خان نومے د چا سری د خطے بیانوی او وائی چه په دغه وخت کښے ملا خان سپین بدرے بوډا او وبے شانه پرهیزګار او نیک خصال سړے وو په رشتیا ګوئی مشهور وو۔ دا ملا خان په خپله د اخون صاحب سرهٔ په دغه بیړئ کښے نامت وو او په دغه وخت کښے ما شوم هلک وو۔ شاید چه د ملا خان خپل پلار د جهانګیری اخون صاحب وو۔

هم دو چه د خپلې خوش گپئ او خوش طبیعتئ له مخه مشهور وو۔ دے هم په
دے پوهې کښې ناست وو او ماښوګي سره ئې په خپله چپوګان وهل۔ دوے
طالب ترملایو تیکے وو چه په کښې یوه قیمتي چاړه وه۔ د چپو وهلو په وخت
چه دے د سیند په لوری کوز شو نو هغه چاړه ئې د تیکي نه او وته په سیند
کښې ګذار شوه۔ دے طالب هغه تیکے هم د ملانه راوسپړ دو او چاړے پسے
ئې سم ور ګذار کړو۔ په دغه وخت کښې دوئ د دریاب په مینځ کښې وو۔ دے
طالب په چغه او وئیل چه تیکیه ته هم ورسره درومه چاړه او تیکے دواړه
به زه په منهال پورے کښې د فقیر صاحب نه غواړم۔

کله چه دوئ د دریاب بلے غاړے ته راغلے نو په دوئ کښې چا د سیند
په غاړه هغه چاړه او تیکے دواړه پراته اولیدۀ۔ هغه طالب ته چا اواز اوکړو
چه فلانئ راشه دا تیکے او چاړه دے واخله۔ تا د فقیر بابا نه غوښتی وو
دا دے پراته دی۔ کله چه دوئ منهال پورے ته اورسیدۀ۔ فقیر بابا په
منهال پورے کښې وو۔ د نمانځه وخت وو چه نمونځ ئې اوکړو۔ د اخون صاحب
او مدګر وسره ئې ملاقات اوکړو او مسکے مسکے به کیدو۔ بیائې اخون صاحب
ته اووے چه راشه چه دُعا اوکړو۔ دے تپولو مدګرو ته چه څوک تاسره
راغلی دی هغه ټولو ته ئې دُعا اوکړه۔ د دعا نه پس ئې اووئیل چه
نور و ته مو دُعا اوکړه ولے دے طالب ته به دعا نۀ کوو۔ ځکه چه دۀ
چه په ما کوم دعویٰ کړے وه یعنی چاړه او تیکے ئې له ما غوښتے وو
هغه ئې اوموندل۔ نور دے څۀ غواړی۔ پس له دے ئې هغه ټول
رخصت کړل۔

په بلا کښېوتے وو دا نه مابت پوره [ل]

په اور او سولے حیرانه مابت پوره

د فقیر بابا په وخت په مابت پوره نوے کلی کښې دوه خانان وو چه ډیر زیاتی ظالمان او بے رحمه وو۔ د کمزورو مال به ئے خوړو۔ شرابونه به ئے څښل۔ دم بازئ به ئے کولے۔ نه یواځے دوئ په خپله بلکه د دے کلی ټول خلق په دغه وخت کښې په ناروا کارونو اخته وو۔ هر قسمه ګناه به د دے کلی کښې کیده۔ فقیر بابا ته چه د دے خبرے پته اولګیده نو خپل زوے فقیر صدیق ئے سره د څو فقیرانو په غرض د امر بالمعروف ور اولیږه۔ فقیر صدیق صاحب چه دے کلی ته راغے۔ دے خانانو او خلقو ته ئے د سمے لارے تلقین اوکړو۔ د اخرت د عذاب نه ئے اوویرول۔ ولے په دوئ هیڅ اثر اونه شو۔ بلکه په فقیر صدیق او د هغه په نورو فقیرانو پورے ئے خنداګانے او ټوقے مسخرے جوړے کړے۔ تر دے حده چه د دے کلی خلقو پرے د ګندګئ او څپیاکو ګذارونه هم اوکړل۔ فقیر صدیق چه واپس راغے۔ فقیر جمیل بیګ بابا په دغه ورځو کښې په شیدو کښې وو۔ چه د دے حاله خبر شو۔ ډیر خفه شو۔ په جوش کښې راغے او صدیق صاحب ته اووے چه ستا د جنګ وار تیر شو۔ اوس زما د جنګ وار دے۔ فقیران ئے د ځان سره مدګری کړل۔ په خره سور شو۔ طنبلونه درپالونه او د سرود سامان ئے راواخست۔ د مستئ او جوش په عالم کښې د مابت پوره په طرف ورغے۔ چه د سیند غاړے ته ور اورسیدو۔ خبرے

---

ل شمس الدین دا واقعه د جهانګیری د چا اخون زاده صاحب په روایت نقل کوی او وائی چه د مابت پوره د دے په حقله رنګ رنګ قیصے مشهورے وے۔ په څه بل ډیر اختلاف دا واقعه هر چا ته یاده وه نو ما د تصحیح په غرض د جهانګیری د اخون زاده صاحب نه پوښتنه اوکړه۔ او هغوئ راته د خپل پلار په سند دا قیصه بیان کړه۔ چه د هغوئ پلار د هغه عصر سره تعلق لرلو۔

ورته اوکړو - په دې کلي کښې بلک نومې يو خان وو - يو ځلې هغه راغې او د فقير بابا نه ئې معافي اوغوښته چې ما ته امن راکړه - دا نور خلق زمانه منئ - او باقي نورو ورته هم هغسې جواب اوکړو لکه څرنګه چې ئې فقير صديق ته کړې وو فقير بابا ملک خان ته اووې چې څه ستا کور به په امان وي - نور مې د مستئ په عالم کښې چغه کړه چې -

ه په ملا کښېنوے ودانه مابت پوړه　　په اور اوسوے حيرانه مابت پوړه

او دې ويناسره سم په مابت پور اور اولګيده - هر څه چې وو اور پرې بل شو - که چا څه سامان د خان سره راخستې وو او د صحرا په لوري تښتيدل په هغوئ په لاره اور اولګيده که د چا د دې کلي مال په ميره يا پټو کښې وو په هغو هم اور پورې شو - تر دې حده چې هر څه سوي سکاره شول - يو ځلې د هغه ملک کور پاتې شو چا چې د ورانندې نه امن غوښتې وو او توبه ګار شوې وو -

د دې نه علاوه نور ډير واقعات او کرامات داسې دي چې د فقير بابا د ولايت د مقام تعين کوي -

# کتابيات

د دې مقالې په ليکلو کښې چې د کومو کتابونو نه استفاده کړې شوې ده د هغو نومونه دا دي -

۱ - تاريخ مرصع تاليف د افضل خان خټک له دوست محمد خان کامل

۲ - خوشحال خان خټک اردو

۳- مناقب فقیر جمیل بیگ قلمی و مطبوعہ

۴- مناقب شیخ رحمکار، قلمی پښتو اکیډمی پېښور، یونیورسټی

۵- تاریخ مشائخ چشت از خلیق احمد صاحب نظامی

۶- انوار اصفیاء

۷- روحانی رابطہ او ترون قاضی عبدالحلیم اثر

۸- ماھنامہ الحق مضمون د ډاکټر حنیف اسلامیہ کالج
خوشحال خان کا خاندان اور تصوف اکتوبر۔ ستمبر ۱۹۸۰ - ۱۹۸۱ء؛
اکتوبر نومبر ۱۹۸۱

۹- سر دلبران از سید محمد ذوقی شاہ صاحب

۱۰- انوار قدسیہ از علامہ عبدالوھاب شیرانی

۱۱- تذکرہ صوفیائے سرحد از اعجاز الحق قدوسی

۱۲- رسالہ کاکا صاحب اردو عقاب خټک

۱۳- تاریخ خټک از سرفراز خان عقاب خټک

۱۴- تذکرہ شیخ رحمکار از سیاح الدین کاکاخیل